# د ستورو ورا

**شعرونو ټولګه**

خیال محمد کټوازی

۱۳۸۶ لمریز

# ځانګړنې

| | |
|---|---|
| دکتاب نوم | د ستورو ورا |
| ویناوال | خیال محمد کټوازی |
| چاپ شمېر | ۱۰۰۰ ټوکه |
| چاپکال | ۱۳۸۶ |
| ډیزاین | حاجي محمد عمر خېل |

د انټرنېټ په مخ ترتیب او ډیزاین کوونکې سمسور حبیبي

# بسم الله الرحمن الرحیم

## یادونه

دغه شعري ټولګه مې د۲۰۰۲ع کال په اوږدوکې د هالند د روتردام په ښارکې لیکلې ده چې له یوشمېرشعرونوسره مې پښتومتلونه هم راوړي خو په ځنې شعرونوکې یې د قافیې او وزن په خاطریوڅه بدلون مېندلای چې د پاڼې په پای کې مې ببېرته په اصلي بڼه لیکلي دي.

مادخپلې وسې سره سم زیار ایستلی چې په خپله ژبه یانې په پښتوژبه شعر ووایم اوکه په ځینې شعرونوکې د قافیې کمښت نه یم اړ ایستلي نوزیاته هڅه مې کړې ده چې د پردیو کلمواولغتونوڅخه ډډه وکړم.

د دې کتاب شعرونه مې که څه هم دغزل په شکل اوبڼه کې راوړې دي خو منځپانګه یې توپیرلري ،دشعر د نوروڅېرو په تېره دنوې اوآزادشعر په لیکلومې خپل وس اوبخت نه دې ازمویلي.

دکتاب متن مې پخپله ټایپ کړی دی که کومه ټایپي تېروتنه ولري او وزن یامانا ته یې زیان رسولی وي نو په مابانډې بخښنه ولوروئ

زه په شعروېیلوکې یواځې د الهام رول ته ډېره عقیده نلرم بلکې ددې په څنګ کې زیات لیکل،لوستل اوتمرین کول هم خورا زیات اهمیت اوګټه لري یانې دشعرناوکۍ هغه مهال ښه ښکلامیندلای شي چې سینګارته یې زیات پام وشي.

که څه هم زه یو مسلکي شاعر نه یم خو دخپل ګران
هیواد او سپېڅلیو خلکو مینې او دخپلې مورنۍ خوږې ژبې
پور او عشق مې دې ته اړباسي چې که دخپلې سرلوړې ژبې
په سمندرکې یو څاڅکی هم ورزیات شي نوحق به یې یوڅه
اداوبللی شي ځکه چې دیوه توکم هویت ،موجودیت ،برم
تاریخ،ویاړ اودرنښت تر ډېرې کچې په ژبه پورې اړه لري او
که له دوئ څخه ژبه واخستله شي نو هغوی بیاخپل کلتوري
هویت،ملي جذبې،دهیوادمینه،لرغونې ارزښتونه،تاریخي
کارنامې اوتوکمیزې اړیکې نشي پېژندلای اونه دهغوپه
اهمیت اوخوند پوهېدلای شي.

په درناوۍ خیال محمد کټوازی
هالند روتردام
۲۹ -۱۲ -۲۰۰۶

## د خیال محمد کتهوازي لنډه پېژندنه

خیال محمد د عبدلغفارزوئ په کال ۱۳۲۹ کې د پکتېکا د ولایت د مرکزد ښرنې د ملکانو په کلي کې زېږېدلی، لمړنۍ زده کړې یې د ښرنې د علي بابا په لېسه کې نورې زده کړې یې د رحمان بابا په لېسه کې اولوړې زده کړې یې د کابل پوهنتون د ابیاتو د ژورنالیزم په څانګه کې پای ته رسولې.

له ۱۳۴۹ کال څخه یې د راډیو افغانستان د خپرونو په ډېرو برخو کې کار کړی دی، په ۱۳۵۵ کې د راډیو د خپرونو دلوی مدیریت مرستیال په ۱۳۵۷ کې د راډیو تلوېزیون د وزارت معین او د سولې او پیوستون ریس وو.

خیال محمد کتهوازی د ۱۳۵۸ کال په پیل کې د اطلاعاتو او کلتور وزیر وټاکل شو خو د همدې کال د جدې په شپږمه نېټه په افغانستان باندې د شوروي اتحاد له خوا یرغل وشو او خیال محمد یې سمدلاسه زندان ته ور ټېل واهه چې د شورویانو د استعمار په ټول دوران کې د ببرک کارمل د څرخي پله په زندان کې څه ناڅه نهه کاله بې ګناکوټه قلف ساتل شوی وو.

په ۱۳۶۷ کال کې څرنګه چې شورویان له افغانستان څخه په زور شړل شوي وو د ډاکتر نجیب د ملي مصالحې په دوران کې د نهه کاله زندان له تېرولو څخه وروسته د نوروزندانیانو سره یو ځای راخلاص شو، یو کال وزګار ؤ او بیا یې دباندنیو چارو په وزارت کې لمړی د سلاکار او

ورپسې بې د معین په توګه دنده درلوده، په ۱۳۷۰ کې د
سفیر په توګه دلیبیا هیواد ته ولاړ اویو نیم کال وروسته
د جهادي ډلو ټپلو دخپل منځي درنو جګړو په وخت کې د
دهالند هیواد ته مهاجرشو .

خیال محمد دهمدې کتاب په ګډون دری شعري
کتابونه لري او له ۱۳۴۹څخه تر ۱۳۵۷کال پورې دهیواد
په ځینو خپرونو په تېره بیا په راډیوکې لیکنې او څېړنې
لري .

# پښتو

ځوانه که پښتو وایې نو ښه پښتو به وایې
دغه دجنت له خواتوښه پښتوبـــــه وایـــې

ته د درنو غرونو په لمنو کې لوی شوی یې
سپکه خوبښکه ده ،درنه پښتـــتو بــــه وایې
ښه یې له پردیو زیړو تورو ښځه وچڼه
ستا ژبه سپېڅلې ده سوچه پښتو بــه وایې
داد ګلو ونه چې وطن پرې ښکلی شوی دی
ځانګې ورنه مه شکوه نګه پښتـــو به وایې
اوس یې چې ګرېوان ته تورلاسونه ورلوېدلې دې
ښه په لمن پاکه پښتنه پښـــــــتو به وایې
ژبه خو پسول ده د ولس دښکلا ناوې ته
ګل غوندې سمباله په ګاڼه پښتو به وایې
ځنې غمازان یې د اوګرې غوندې لړې سره
ستا ښځه مې هیله ده خوږه پښتو به وایې

بیایې دنړۍ له سترو ژبو سره سیاله کړه
ځانته که افغان وایې کـــره پښتو به وایې
ښکلې امېلونه دشعرونو ور په غاړه کړه
«خیاله» ښه مهینه ښایستــه پښتو به وایې

# واکې

ګرد چاپېره مې راګــــرزوې ګــرداب ـــــه
لا تـــــرڅومې څرخوې دغم دریابه

د وطن دمینې اورته چــې کـــړېـــــږې
ته زمـــــادزړګي غوښه یـــې کبابه

هرمطرب مې شرنـــګوي دزړه تـــــارونه
ستاپه شانې وچ لرګی شو مــــه ربابه

اوس غبارد ناپـــوهـــــــې راپسې ګرزي
چې مې غبږې ته پناه دروړه کـــتـابه

دژوندواکې مې دعشق په ولـــــکه ولاړې
له اورمېږسره مې څه غواړې تـــنابه

لکه شپه چې پـــه رڼـاورشـــــــې زړښته
زه دې وایستمه هسې لـــــه شـــبابه

مادعشق په نوم خپل سرپه لاس کې درووړ
تا په پڅه توره غوڅ کړانقـــلابـــــه

چې د «خیال» په سرکې شوراومستي ګورې
ستادزړه په شان مستي لري سیلابه

# راځه

دواړه سترګې دې لړ تورې کړه راځه
امېلونـــه دې درپـــــــورې کړه راځه

یو وار بیا دبڼو برید راباندې وکړه
دزړه ستـــنې مې نسکورې کړه راځه

له تندي دې دلونګو خوشبویي ځي
تورپــېکی دې دورې دورې کړه راځه

که زما دزړه توتي په دام کې ساتې
دازړې لومې دې نــــورې کړه راځه

چې ځواني دې په نظر نشي له مانه
غوړې څڼې دې لړ ســپورې کړه راځه

که د «خیال» د اوسپډو خونې ته راشې
دروازې درســره پـــورې کړه راځه

## د اکبر توره

د غم برخې مې لیکې قلمه ولې
پام دې نه را باندې نیسې ګرمه ولې
چې پخپله یې پتنګ په اورستي کړ
ترګهیځه پورې ژاړې شمعه ولې
د اکبر د لاس وسله چې اوس خرڅېږي
ډک بوړی به د مېړانې ږدمه ولې۱
چې په خوله باندې مې نوم د هیواد راشي
تربښولاندې مې ګرزې نمه ولې
د وطن د ویاړ شمله مې راکوزېږې
لا تر اوسه نه ماتېږې زغمه ولې
ستا په چوف کې خومې تللي وونذرونه
هر سر کوزې ته دې اړکړم دمه ولې
په هیواد کې مې دوینو باران اورې
زه به ناست یمه د بل په تمه ولې
د «خیال» زړه خوڅه کور به د هرشي نه دی
تل ترتله پکې مېشت یې غمه ولې

--------------------------------

۱:بوړی =توپک (د توپک یو ډول دی چې پخوا
یې ډېر استعمال درلود او تر نورو ګرانه هم وو.)
په پښتو لنډیو کې ډېر یادېږي لکه:
تردا بوړي توپک دې جار شم
تړلی تا دی کړه زه له خیاله ځمه

# د ستورو ورا

ګلشن په ګلو ښکلی دی کېږدې ورڅخه مه وړه
چمن یې رنګین کړی دی غوټۍ ورڅخه مه وړه

په دښته د آسمان کې یې رڼا لګې تورتمه
د ستورو د وراناوې ده سپوږمۍ ورڅخه مه وړه

د سیند په غور ځنګونو کې مستي یې د زړه هیله
کبان ورڅخه مه وژنه هیلۍ ورڅخه مه وړه

دا غشې د لیندیو څخه وباسه صیاده
بیدیا ورسره ښه برېښې هوسۍ ورڅخه مه وړه

نسیم د پسرلي ورسره لوبې کوي بازه
دا زرکې دي که زانې توتکۍ ورڅخه مه وړه

ادم چې په دې ځمکه خلیفه د الاهي ده
دژوند ښکلې توښه یې دا نړۍ ورڅخه مه وړه

ترڅو به په دې غرونو د تا سیوری ګرزې د ببه
د «خیال» د زړه د مینې ښاپېرۍ ورڅخه مه وړه

## لا يې مړه بولي

«يو متل دی وايي مکړه هغه منډه ۱
چې لمن دې شې په کلې کې بربنډه»

د مېړانې دې کمی نشته افغانه
خوغمونه دې ليکلې دي په تنډه

«چې په لاس باندې وازيږي څه حاجت دی ۲
چې په خوله يې خلاصوې تر لې ګنډه»

غليمانو مو بياتي په لاس نيولې
له هرلورې غوڅوي دوطن څنډه

«لاتر اوسه پورې مړه ورته وايي ۳
د پټې ريشکه يې وخوړله غونډه»

ستا له هرنګه ښېګڼو څخه تېر يو
خو داغله دې ببرته وباسه ګاونډه

چې په تورو دې وهو ويجاړ به نشې
کلک ولاړ يې د افغان دلارې خنډه

چې يې برخې له ازله راوېښلې
خدا زده څه شوه د پښتون دنصيب ونډه

«ستا د پوهې په سمند پورې یې اړه ۴
چې د بخت بګۍ به څو پوري وي رنډه »۵

که هر څو دې تشوو نه خالي کېږي
لاتر پیڅو پورې ډک یې د ویرډنډه

د زړګي د خندا ګل مې نه غوړېږي
په هر مټ باندې مې بارده د غم پنډه

ستاله پټ سره به پایو د «خیال» ژبې
د پښتون د توکم مورې مه شې کونډه



.......................................................................

۱: وایي مکړه هغه منډه چې سومبې دې شي بربنډه
۲: غوټه (ګنډه) چې په لاس خلاصیږي خولې ته
څه حاجت دی .
۳: د پټي ریشکه یې ټوله وخوړه دوئ یې لا مړه بولي
۴ : سمند = آس = نیلی (د آس یو ډول دی)
۵ : رنډ = نه منونکی = ځېل کونکی = رېنګه کونکی

## خطر

نصیب وکړې هسې چارې په مابانديږ
وبه نـــکوي انګار پــــــه وچې سپانديږ1

دعزت کالي مـــې کــــابړي لـــه بدنه
په لغتو مــــــې وهــــــي راپورې خاندې

زه له شرمه چاته حال وبـــــیلی نشم
برچه پک دي خدازده څه راباندې کاندې

تش زګروی کــولی نشمه سخـتي ده
چې ټټرمې شــــو د اوبښ تــــرسینې لاندې

دواړه لاس مــــې راتړي په ځنځیرونو
ټبــــــــل وهي مې د اجل په لورورانديږ

د رباب اود شپېلۍ نغمې سرې شوې
اوس په هره خواکې چیغې دې یاساندې

مــــورې پــټه خوله دې ونیسه خطردی
نورد «خیال» په قبرمه شکوه غړواندې2

-------------------------

1: سپانده = سپېلنی
2: غړواندی = غړوندی = غاړ

# دفکرکجاوه

دیدن ته دي راغلی یم مانیٔ ته مې درپـــــرېـــږده
په څنګ کې به دې کېنمه نالیٔ ته مې درپـــــرېږده[۱]

پوهېږم چې په سترګوکې دې شرم ځای نیــــولی
مجبوریم درته ووایم خولګیٔ ته مې درپرېــــږده

که داغوښتنه ګرانه وي نوخوادې بده مـــــــه شه
ګرېوان ته دې لاس نه دروړم تنیٔ ته مې درپرېږده

که لږ پسې درتېرشمه دښکـــــــــلې مخ له پولې
دزنې ترمنې لاندې غــــــــــړیٔ تـــه مې درپرېږده

دزلفـــــوله هــــــرتـــال سره دې فـــکرزنګومه
چـــــې زړه درسره وتړم کمڅیٔ ته مې درپـــــرېږده

داتـــــولـــې مې که نه منې نو وه بدریٔ جـــمالې
د اوښکوله باران سره سولګیٔ ته مې درپرېـــــږده

دفکـــــــرکجـــــاوه مې د واده په اوښ سپــــره ده
د «خـــیال» سپېره نصیبه ناوکیٔ ته مې درپرېـــږده



---

۱: نالیٔ = توشکه

## مرغلرې

که لرې رانه پاته دې که برې رانه پاته
دزړه دواړه ټوټې مې برابرې رانه پاته
په ځالو دګوربتوکې چرګوړې مېشته شوې
دچتکو په منګولوکې کوترې رانه پاته
پردیو پیرغلونو کړم له ساندو سره روږدی
له ډول او له اتڼ سره سندرې رانه پاته
نسیم یې له پلو سره خوځښت کولای نشو
دږیرو په تاړاک کې خیالیګرې رانه پاته
نږدې ورته ورتلای نشم له زهرو یې وېرېږم
په ستونې دښامارکې مرغلرې رانه پاته
واتڼ دپردېسیو مې دهیلو زمری وژنې
وطن مې ترغدیو لاندې لرې رانه پاته
له تېکې څخه توره مو دبل په امر وزي
بدله زمانه شوله ډغرې رانه پاته
د«خیال»دزړه شاهین دی دهوا په لټه پایي
دښکارپه تورولوموکې وزرې رانه پاته

خال دې پاچا تندی وزير زلفې لښکرې
په هيوادونو دې ولکه ده زوروري
خوله دې دربارغاړه دې ارګ سينه دې تخت ده
دواړه لېمې دې پيره داري بختوري
مخ دې سپوږمۍ ځواني دې لمرخالونه ستوري
ستا دښکلا ډېوې بلېږې خياليګرې
وربل دې دام څڼې دې لومې د وربښمو
زما دزړه بوراخومه نيسه دلبرې

۱۳

رنګ دې ګلاب ونه چنار بوی دې دمشکو
نوم دې په درسته نړۍ تللی مرغلرې
څڼې دې رنګې کړه زما دمټ له پاسه
«په خوند دې نه يمه په خرپ دې يم ګاځرې»
زړه دې انګارګوګل نغری مينه دې اورده
مايې لمبو ته کړوې د لرې لرې
زما دزړه ستنې به رنګې کړې له بېخه
که دې راواړولې سترګې مرورې
خوله دې غوټۍ خندا دې ګل ديدن دې باغ دی
دعشق بلبل مې غږوي درته سندرې
د «خيال» له پام څخه به ولاړې نشې دواړه
دتادسولې ښايسته سپينې کوترې

## ځونډی

اوردمينې راکړه چې لوګی دې شم
وچ به دې نظرکړم سپېلنی دې شم
خوله خودې پېزوان په اجاره يوړه
لاس دې رانږدې کړه چې بنګړی دې شم
څنې دې زماترملاوپېچه
ځان راسره وتړه مېږوی دې شم
ښه مې په کتوکتوکې وڅاره
ستازمريوسترګوته کبلی دې شم۱
تاخو په ګلونوزړه بايللی دی
راشه چې دهيلوپسرلی دې شم
پاس مې د وربل په څوکو وټومبه
ښکلې چې په څنيوکې ببری دې شم
اوسم به دمشکوله وږموسره
ياره که په غاړه کې ځونډی دې شم
«خيال»په ګودرونوباندې ګرزوه
پرېږده چې په سرباندې منګی دې شم



---

۱: کبلی = دهوسۍ زوی = آهوبره

## د کوږ کتې

که د زړه د مینې راز غواړې د چتې ١
کیسې ټولې دي له او ښکو سره پټې

«نڅاګره چې نڅا کولی نشي ٢
وایي مځکه لاکږه وینم له ستې»

چې له شوقه به په لاره سمې نه تلې
په دې ښارکې پاک لمنې اناوتې ٣

خپلو ښکېل کړو د پردیو په دامونو
کنه موږ خو د رلو د لې پخې متې

«که یې لاستی له خپل ځانه څخه نه وای ۴
تبر څنګه ما تولې ونې غوتې»

هم یې لاس زما په وینو باندې سره دي
هم به ووړمه د قاتل د وبال څتې ٦

« اوس د یوې سپږې لپاره چې لري یې ۵
ټول پوستین په اورکې غورزوي دالتې»

نه یې ګورمه ښارونه بې خطره
نه زما جونګړه پاته شوه د ختې

## د پردو ترمنت لاندې مه شې «خياله »
## «دلاهور ترګټو ښې دې د کورګټې» ۷

۱۷

---

۱: چټه: په وزن د «لټه» = مسته = ښايسته = خياليګره.
د پښتو په لنډيو کې ډېر دود لري لکه:
چې کته ځې خال ته مې ګوره
دهندوستان د چټو نشته شنه خالونه
۲: نڅاګره چې نڅا نشي کولای وايي مځکه کږه ده
۳: اناوټ = د بل د اوږو بار = اړ = محتاج = بېوزله
۴: ونه وايې که مې لاستی له خپله ځان څخه نه وای
نو چا نه شوم ماتولی .
۵ : څټه = جوال = بوری = بوجی = وری = توبره
۶: ديوې سپږې له پاره ټول پوستين په اور اچوي
۷: د کورګټې دلاهورګټې دي

## خیال غواړې

زړه مې یار بدلی دی وصال غواړي
ښه یې په ګانه باندې سمبال غواړي
ځان پرې کړوي دکباب خوی لري
داډبوه پرست پتنګ مشال غواړي
پر ېږده چې توبې ورسره ماتې کړم
مسته په سروشونډو کې وبال غواړي
بیا به مې دزړه خونه روښانه شي
یارمې دتندي دپاسه خال غواړي
اوس مې په کوګل کې غبارونه دي
زړه مې داشنا دمخ مشال غواړي
بیا مې دابدرنګه صیاد ځاري نن
سرمې غوځوي راځخه مال غواړي
«خوله یې دګیدړې شخوند داوبن وهي»
ځکه له افغان سره جنجال غواړي
بیا لکه ژوره د ،رګ وینې څښي
توره خپکی ګوره موړوال غواړي
حق ته خو اورونه ګلزارونه شي
ژوندمې د انګار په لورې تال غواړي
روږدی شو په وینه د انسان باندې
بیا خوني ښامار راغلی «خیال» غواړي

دا شعر مې لا پخوا لیکلی وو.

## مجبوري

کډې وتړی، زا منو سبا وون دی
اوس زمونږ له خپل وطن څخه بېلتون دی
کلی کور او هدیره مو پاته کېږي
مجبوري ده په سفر باندې مو یون دی
له آمو نه شوروبان را پورېوتې
نن په ټولو اولسونو کې پاڅون دی
خودا پورې پاکستان ته پناه وړمه
غم ځپلی زړه مې ځکه ځګرخون دی
د شمال او د سهیل په منځ کې ښکېل یو
د دوئ د وا ړو دافغان په ضد تړون دی
«سپي په خپلو کې که څومره سره وران شي
خو فقیر ته بیا د ټولو پیوستون دی»
زو یه ګوته په ماشه نیسه په لارې
د هیواد د آزادۍ په نوم موتلون دی
د قصاب چاړه په لاس کې چلوي یې
«خیاله» څرنګه ونډۍ ونډۍ پښتون دی

## دبخت هنداره

چې هرچېرې لټومه ښکلی یار
مخامخ راته راځېرمه شي اغیار
خپلې ډکې خزانې ته چې ورځمه
ترې چاپېره وي دبل کلي ښامار
که هرخوېې پرېمینځم دبخت هنداره
سر په سر ورباندې ګرزي تورغبار
زه دکلي په ناورین باندې خپه وم
اوس به څه کړم ورانوي مې غلیم ښار
«نن خو تش دموږ له څنګه سره تېرشو
زه وېرېږم چې دا لاره شوه دمار»۱
چې رقیب باید پرې خپله ځړېدلای
نصیب موږ ته درولی هغه دار
سپېره منی ورنه ښه ګڼمه «خیاله» ۲
که په وینو وي لړلی نوبهار

---

۱: وایي له دې څخه نه ډارېږم چې مارمې له څنګه تېرشو بلکې له دې وېرېږم چې دابه یې لاره شي .
۲ : منی = خزان

# لونګ

که هرڅو مره یې سیالان ګڼي بد رنګه
ماته ښکلې له هرچاده شوخه شنګه
د سرسترګې مې کږې ورپسې اوړې
چې د پړک غوندې مې تېره شي له څنګه
«خوند یې ښه دی راتله یې» زما وند ه
چې لرې یې دا شنادمینې بنګه
په تومت د عشق یې زه په اور کړېږم
خو په غاړه کې یې ته زانګې لونګه
لکه موج د اباسین چې په موړو ځي
مسته هسې وي روانه ړنګه بنګه
ماته برید د سپینو تورورا په یاد شي
چې دې اورم دلیلا دبنګړو شرنګه
«خیال»د زړه په هغه رنځ باندې اخته شو
چې یې واخست د تېرو ښو له جنګه

## د نیل ناوې

مړاوی شانته ګل یم له پرهاره سره اوسم
اوس چې دا زغیو له بهاره سره اوسم
مینې زما برخه په اورونو کې لیکلې
غوښه د کباب یم له انګاره سره اوسم
نن یې ترملا پورې بمونه راتړلې
څه ساده پښتون یم له هوښیاره سره اوسم
خپله پیمانې وهي په ما باندې مرچلې
ځوان د لوړو غرونو یم له ښاره سره اوسم
ښه ګېډی د ګلووم راولوېدم له څانګې
یووړمه باروتو له غباره سره اوسم
بیا لکه د مصرناوکی د نیل څپوته
ونډه د توپان شوم له سینګاره سره اوسم
«برخې ازلي دي نه په زور نه په زاري دي»
زه ازل رټلی له ښاماره سره اوسم
پښ یم ټکولی د زرګر له بټۍ وزم
تش په تصور کې له رخساره سره اوسم
خپله د انګور په شان له تاکه څخه شکېږم
نوروته په جام کې له خماره سره اوسم
ګرزي هر صیاد را پسې ولې مې په غشو
زه د توتکی غوندې له ډاره سره اوسم
اوس خو چې ګیدړه له زمري څخه باج اخلي
پېښې مې اړباسي چې له واره سره اوسم
ویاړم چې تر اوسه لا د خپل طن په مینه
اوښ غوندې تړلی له مهار سره اوسم
«خیاله»ځان بدل کړه زمانې په اوښتو دي
ځو به لا په خوب کې له ټینګاره سره اوسم

## د فلک مېچنه

دلا مبو په نمت را غله هغه لوړه
ډنډ په خپله غېږ کې و نیوه لغړه
بخته ما سره دې څه تربور ګښي ده
چې یې نه بولې زما د یارۍ وړه
د آشنا د شونډو سرې سکروټې ګوره
زما زېړ زبېښلی رنګ ورسره تړه
لا ترڅو به لاس ترزنې ورته ناست یم
چې مې ګرزي په هر بڼ د غبار لړه
«یو متل دی وایي ښه ده په عمل کې۱
له پراته زمري نه ګرزنده ګیدړه»
ځوځ خونه یم چې ازغي په غېږ کې ساتم
د باغ ګل یم له وړمو سره مې اړه
زما سترګې لکه غلې ورپسې اوړي
چې تېرېږي مې له څنګه سره غوړه۲
څو چې ګرزي د فلک مېچنه هسي
د پښتون د بخت اوګره به وي ناوړه
د رتبې د شوق په تمه دې زاهده
د مذهب ښکلې لمنه کړه ککړه
په خوځښت د زمانې کې معجزه وه
چې یې ماته کړه د خیال د نصیب دړه

---

۱: تر پراته زمري ګرزنده ګیدړه ښه ده
۲: غوړه = ښکلې = ښایسته

## اورلوبه

هسې چارې دې راوکړې مينتوبه
چې اوس ګرزمه رسوا له لېونتوبه
که هرڅوژور ويده يمه هيواده
ستاتوده مينه مې وباسي له خوبه
هسې رنګه دې غمونولوغړن کړم
چې مې اوښکې شولې وينې له زووبه١
روغ زړګی مې ستادمينې له بابته
په ګوګل کې نه ځايږي له پړسوبه
ښه ځواني مې دپتنګ غوندې لوګی شوه
چې مې وکړه ستاله عشق سره اورلوبه
سر او مال به زما دواړه درنه جارکړم
که مې ستا په مينه تنده شې خړوبه
خياله پاڅه دتکل نيلی په زين کړه
مېړني خونه ډاربږي له سرکوبه



---

١: زووب (زهوب)=ګزک=التهاب=خوږين = انفيکشن. (هغه ګزک او التهاب چې له ټينګې وينې سره له ټپ څخه راوزي.)

# پردېسي

چې د باد غونډې مې تېره شوې په څنګ
زما زړه درپسې درومي په غورځنګ
هسې رنګه خوشبويي دې ځي له زلفو
نه يې مشک لري نه عطر نه لونګ
دا ځواني چې ته لرې د چنار ونې
مابه وباسې له کلې نه ملنګ
د کاروان بهيربه پټ په غرونو ولو
چې وانه ورې کوم يو غل د جرس شرنګ
«غوښې ټولې د خانانو په خوراک ځي ۱
په هډوکو يې د سپيو سره جنګ »
هغې سپينې زما ږيره کړه راسپينه
چې وربل يې شو په مخ باندې راړنګ
د ښرنې و چې د ښتې مې ياد ېږي
پردېسي ده په يوروپ کې مې زړه تنګ
«اوس له پېښې څخه تېښته وايي نشته»۲
«چې مې يو پلوته پړانګ دی بل ګړنګ»۳
خياله بېرته د خوشحال تورې ته لاس کړه
چې دې بيا په کهاله راغی اورنګ



---

۱:غوښې خانان خوري په هډوکو يې د سپيو جنګ وي
۲: له پېښې تېښته نه شته
۳ : يوې خواته پاڼ بله خوا پړانګ دی

# چاودنه

سپېدو وچاوده په پای کې رنګ دشپې
هره خوایې رڼا ګانې کړې خورې
لاګلابو خپل تاجونه سمول
چې خاڅولو په سر جګې کړې شملې
دګلپاڼو په لمنو اوربدلې
مرغلرې دشبنم رڼې رڼې
د وږموڅپې نسیم په غېږ کې یوړې
ورو بښلې یې بلبلو ته ولجې
چنارونوتر نظرلاندې څارلې
چې ترې لاندې غوړېدلې وې غونچې
په شنبلیوکې لګیا وو بوی دمشکو
له ګلاب سره سینځلې نڅېدې
پلوشود ونوڅڼې ږمنځولې
په لښتیوکې اوبه رابهېدې
دګهیځ شمال یې څانګې ښکلولې
له غوټیو سره پاڼې غوړېدې
په هرګوټ کې ګودرونه وو د پېغلو
پنډېدلې پرې دکلې پښتنې
چې ناڅا په توغندی دغلیم راغی
لور په لور باندې یې تیتې کړې چرې
دچڼچوڼو پرهارونه یې څیرل
له توتیانو څخه وینې څڅېدې

دچالاس او دچاسر وړپورې نـــــه وو
ښکلې نجـــــونې په ټپونو کې پرتې
پټول يې خپل زخمونـــــه په منګولو
دګـــــودرغاړې په وينو باندې سرې
توتکيو ورتـــــه ســـانـدې غږولې
له غوغـــــا ســــره په غم کې ګډېدې
خيال چې وليد دغه ويرد باغ په منځ کې
دواړه ستـــــرګـــې يې ترپايه ژړېدې

دمحبوب علي د ښکلې شعر په اقتفا

## تصویر

بخته په دې مړاوې ګل کې بیرته ښکلا واچوه
بیا په دې ویده بدن کې مسته اروا واچوه
ناوې د وطن به بیا د حسن پسول واغوندي
ته یې په سپین مخ باندې رنګینه بریښنا واچوه
زه به د غزلو مرغلرې ورته وپییم
ته د دې څېرې د پاسه سپینه رڼا واچوه
لمر د پیوستون به د خیبر د پاسه وخاندي
ته پکې زرینې پلوشې د وفا واچوه
زه به یې د درستو کړاوونو کیسې ولیکم
ته پرې د خټکو د شعرونو غوغا واچوه
ستانه یې ټپونو ته پټې غواړم طبیبه
لږ پکې افغان ته د یو والې دوا واچوه
راشه د ژوند باده په دې ونو کې راوګرځه
بیا د دغه بڼ په وچو څانګو کې ساه واچوه
بیا به رنګینې د پسرلیو ورته راشي
ته یې په ګلونو کې وږمې د سبا واچوه
خیال ته یې چې نوم افغانستان ترښکلو ښکلی دی
ته په دې وجود کې بیرته ښه پښتونخوا واچوه

## پرتم ځي

«که په لاره باندې مار په هر رقم ځي[1]
خپلې سوړې ته چې ورسېږي سم ځي»
که یې هرې خوا ته اړومه څوکه
برابرمې د وطن په لورقلم ځي
زه پوهېږم چې پخپله ورسره یې
تا به څه کوم زاهده چې پرتم ځي
« توره شپه به بې له چرګه هم سبا شي»[2]
نوریې خوښه ده په سمه که په چم ځې
نن خوپورته دمریخ په تندي پل ږدي
دلته ولې بې ګودره لا ادم ځي
زه به چاته فریادونه رسومه
چې مې بیاله خپلې غېږې نه صنم ځي
نوریې نشم په سینه کې تم کولی
چې دزړه له زولنو څخه مې زغم ځي
دپردوپه اوږوته راغلې سایبه
اوس به خیال له خپله کلي څخه ګرم ځي

-------------------------------

۱: مار که هر څومره کوږ روان وي ،خپلې سوړې(غار، سوري )ته ځان سیخ کړي .
۲: بې له چرګه هم شپه سبا کېږي .

## لاسکتویه

دلته به څوک نه وي چې یې بــــورې نـــه وي غاړې
تول پــــه دغــــه کلې کـــې له غمه څخه ژاړې

وایي«تــــر وژلې ورور پرې ابښې ګومل بښه ده»۱
کـــــور او کلی پــــاتــه زموږ کډې ورنه ولاړې

دغه یـــې انصاف وود جهــــاد دمخــکښانو
وګــــوره دښار کوڅې یې څرنګ کړې ویــــجاړې

څه مشکل صیاد ته چې یــــې ولې په لیـــــندیو
ویرخو په کوترودی چې ځالې یې شــــوې شاړې

بل ته خویې لاس په سلامي نــیـــولـــی پورته
دلته یـــې له موږ ســــره دخـولې خبرې لواړې

څو به لاسکتویــــه ځـــو دبـــل تـــرحکم لاندې
ځوانه که ښـــادي غواړې لستـــونې به درنغاړې

«فیل که چېرې مـــړ شې بیا یې هم په زنګانه کې۲
یو متر او بـــــه خــــولا پــــــه کچه وي ولاړې»

دی خودې پښتــونه پــه اتوم باندې سمبال کړ ۳
خپله دې له سرڅـــخــــه تــړلې دي ریـــتاړې

وينې به دې زيبښي دژورې غــــونــــدې ګله
ځويې چـــې ونه بــــاسې لـه خپلوغوښو داړې

هسې به له شګو څـــخه پـــــړې ځـــانته اوبې
سرپـــــه زنــګون ناست يې دبابا په توره وياړې

ستا په اراده پـــــورې هــــــم اړه لــــري خپله
خــياله «په هغه باندې به واوړې چې يې غواړې»۴

---

۱:تر وژلې ورور پرې ايښې ګومل ښه ده.
«ګومله دپکتيکا د ولايت يوه تاريخي ولسوالۍ ده.»
۲: فيل كه مړشي بيا يې هم په زنګانه كې يو متر اوبه ولاړې وي .
۳ : دپاكستان داتوم پلار قادرخان نومېږي چې په خټه پښتون
اوله ايران سره يې هم په دې برخه كې زياتې مرستې كړې وې
خواوس ديو مجريم په شان ترڅارنې لاندې ژوند كوي .
۴ : چې غواړې په هغه به به واوړې.

# کوکارۍ

چې په مایې لګوې دناز نوکارۍ
له تندي څخه مې وینې وهي دارۍ
دابهیر به دجنون په لورې درومې
دعشق اوښې په تدبیر نشې مهارۍ
چې له زړه مې دغمونوکډې بارکړي
شوخې سترګې دې راواړوه خمارۍ
«په ګیدړې پورې خپله لکۍ اورده »۱
په ماوکړې خپلې مینې هسې چارۍ
که ډېوې یې په هرڅلې بلې نه شي
دعشق لارې ترمنزله دې غبارۍ
چې مې ولې دبڼو په توغندیو
لکه دروی دشپنو وهم کوکارۍ
که له «خیال» سره دمینې ګانه نه وي
دغزلوناوې څنګه شي سینګارۍ

---

۱: ګیدړې ته خپله لکۍ بلا ده

## یرغمل

زه ورته ګورم چې دوئ مې کور وړي
دژوند هستي مې دبل په زوروړي
«اورلره راغله دکورمېرمن شوه»۱
رپاند بيرغ مې رانه نسکور وړي
پخپل پټي کې کرونده وکړو
پروړه زموږ شی غنم مو نور وړي۲
بې له څښتنه دګلو بڼ دی
پاڼې يې باد وړي غوټۍ يې لوروړي
دلوړو غرونو خزانې کاږي
لاجورد يې غله وړي ونې يې اور وړي
دشيخ پلتنې په کوڅو ګرزي ۳
له زړه نه مينه له سرنه شوروړي
موږيرغمل يو دبل په لاس کې
يامومسکو وړي يا مولاهوروړي
په هرګلشن کې سېلۍ چلېږي
توتيان مووژنې باغ مو سمسور وړي
زما په برخه دمينې اوردی
سينه مې سوځي زړه مې ټکور وړي
ګناه يې خپله لاس په بل پاک کړي
مريې خودی دی «خيال» يې پېغوروړي

------------------------------

۱: اورلره راغله دکور مېرمن شوه .« پخوا داورلګيت استعمال دومره نه ؤ برنه وونو سکروټې به د چلم يا چای له پاره يوله بل کورڅخه راوړل کېدې کومه نجلۍ د چاکورته داور لپاره ورغلې وه او همالته يې دکورله څښتن سره اړيکې پيدا شوې وې چې خبره تر واده پورې ورسېده او په دې توګه نجلۍ دکور مېرمن شوه اودامتل ترې پاته شو .»

۲: پروړه = بوس
۳:پلتن= اولسي اوملکي لښکر=غیرنظامي لښکر

## دزړښت خپسکه

یاره نن خو په کتلوکې ثواب را
ستا په سترګو غرڅنیوکې شراب را
چې وړمې یې بویومه پرې مستېږم
ګرانه ماته دهغوشونډوګلاب را
اوس دمینې په غمونوکې ډوبېږم
ستا دڅڼیوله وربښمونه تناب را
زمولوي مې دزړښت خپسکې ورو ورو۱
لږ دمینې ماتولوته شباب را
چې کیسې دعاشقۍ دې پکې لولم
ستا دمینې دمذهب هغه کتاب را
عشقه ښه مې کړوه د اورلمبوته
زه ترټلوته پیدا یمه عذاب را
چې هرتاریې د درخو له زلفوجوړ وي
خیال ته هسې د آدم دلاس رباب را

----------------------------------

۱: زمول « په وزن د شپول » کمزوری او بې سېکه .
دا لغت زموږ په سیمه کې اوس هم دود لري خو دشیخ
اسعد سوري علیه الرحمه دبوللې لمړی بیت چې دغور
دزړور پښتون پاچا امیرمحمد سوري پرمړینه یې
دیوې ساندې په ترځ کې وېلی وو په هماغه وخت کې
هم معمول وو البته د« ز »توری ساکن دی لکه :
دفلک له چاروڅه وکړم کوکار
زمولوي هرګل چې خاندي په بهار
« پټه خزانه »

# درځم

دیدن ته دې هیواده له جرګو سره درځم
ستا غېږې ته دعشق له ولولو سره درځم
پوهېږمه چې لارې پاټکونو دې نیولې
زما جنت نښانه له خطرو سره درځم
داغرونه اوډاګونه دې باغونه د ،ارم شه
بلبل دې یم وطنه له نغمو سره درځم
دزړه په سرمې برېښې لکه ستوری دپېرووونو۱
په تا باندې مین یم له پښتو سره درځم
بېلتون دپرد ېسي دې یم له غېږې نه ایستلی
په دې باندې که پړیم له توبو سره درځم
د «خیال» دزړه دهیلو دساحل دغاړې ګله
دمینې په دریاب کې له لامبو سره درځم

--------------------------------

۱: پېرووني = داپه اسمان کې د ستورویوه ښکلې ډله ده چې یوله بل سره خوا په خواکې پراته دي . کوچیان اوکلیوال خلک دپېرووونو له خوځېدلو او راګرزېدلو څخه دشپې مهالونه اودکال موسمونه پېژني ،له کهکشان اولمریځ نظام سره توپیرلري .

# دکانړې کرښه

راوړه جام دبنګو چې نشې درسره ماتې کړم
اور د مینې راکړه چې لمبې درسره ماتې کړم
څو به لا پلمې د پرهېزونو یادوې راته
پربېږده دزړه سره چې توبې درسره ماتې کړم
زه خو د اجمل غوندې زمری دنظم نه یمه
ښکلې چې په شعرکې ولولې درسره ماتې کړم
بېمنځ به دې دتورو تورو زلفو دولول شم چې
څنې دې په لبڅوکې خورې درسره ماتې کړم
لوزمې له تا سره دکانړې په سرکرښه ده
څه پردی خونه یم چې وعدې درسره ماتې کړم
مخ دې لکه لمر دسباوون دی پلوشې وېښې
راشه چې د وړانګو رنګینې درسره ماتې کړم
دلته بدرګې دبېلتانه راپسې ګرزي لا
مینې دکلونو به دلې درسره ماتې کړم
وایه غماز ته که زموږ له غرونو نه وزې
سم به په دې پرښوکې پنجې درسره ماتې کړم
«خیال» خو که دکلې په دودونو ډاروې لیلا
بیا به دې ملنګ شم چې پلمې درسره ماتې کړم

# ټال

نه دې ساري چېرته وینم نه دې سیال شته
نه دې ګورمه څوک وړ نه دې مثال شته
دډېرې احسان به ولې تروږمۍ وړي
چې د زنې په شیشه باندې دې خال شته
هره شپه یې زنګوه تربرېځره ۱
زما فکر ته دې تل دزلفو ټال شته
راشه اوښکې مې راوچې کړه دسترګو
چې له تاسره زما دلاس دسمال شته
نور به نه درته راوړم دباغ ګلونه
چې وربل دې په ګاڼه باندې سمبال شته
زما مینه برملاده چې څه کېږي
په دې ښارکې خوګردونه دشمال شته
لاترڅوبه مې ترټې په توردمینې
ماچې څومره ځوروې هومره وبال شته
که هرڅوپه اشارورا سره ګرزې
«غل په غره کې نه ځایږي» دامثال شته
دغه لړې د تورتم به هم رڼا شي
دېیلتون په تروږمۍ پسې وصال شته
که یې غواړې له کلاڅخه را ووزه
ستالپاره دګودرپه غاړه «خیال» شته

---

۱: برېځر= څاښت = دغرمې اوګهیځ ترمنځ مهال .
دمهال لپاره په پښتو ژبه کې ډېرخواږه نومونه موجود
وولکه: سپېده چاودیا سپېده داغ، ګهیځ ،لمرڅرک،
برېځر،غرمه،برمل ،لرمل ،لمرلوېده، ترمل او شپه د
اسلام له راتګ څخه وروسته هم موجودووخوبیالکه
زموږ نوره ژبه دناوړو پېښو له کبله وسولېدل اوله منځه

ولاړل یوائې غرمه په ټولو پښتنو کې لا پاته ده دګهیځ
استعمال هم کمېدونکی دی او برېځرزمونږ په خواکې
لادودلري ښکارندوئ علیه رحمه چې د سلطان شهاب
الدین غوري په واکمنۍ کې مخوراوښه شاعرو ود
یوې بوللې څخه یې د پښتو مهالونه داسې ښکاري .
هرګهیځ چې لمرڅرک کېږې له خاتیځه
څوچې یون کادلوېد یځه په څنډونه
که برېځر وي که غرمه وي که برمل وي
که لرمل ، که لمرلوېده ، که ترملونه
« پټه خزانه »

## ټاپې

هغه کوزکلی زموږ وونوم یې ویرشو
چې دا پورې شوروی پکې آمیرشو
دلرغونو خزانو په نمت راغی
خودغرونو په پېچوموکې راګیرشو
له کابل څخه یې پورته کړې لوخړې
چې د کلې ږیرورد بهیر میرشو
دمذهب سپینه لمن به کاندې خړه
چې په سیمه کې ناولی زموږ پیرشو
یو په بل باندې ټاپې دې لګوي یې
لا پرون یې مجاهد وونن کاپیرشو
اوس به چاته د زړه چیغه رسومه
زماخوب دمینې بل رنګه تعبیرشو
لویه خدایه درحمت ډ بوې رڼاکړې
که تورتم زموږ دفکر پې تنویر شو
چې دباز پېښې کوي د ونو چتکې
«خیال» خوځکه په سیالانوکې زهیرشو

## قلم ولاړ

یوه ګیله وه چې دلاسه مې صنم ولاړ
اوس به څه کړم چې مې زړه ورسره سم ولاړ
زه به هم دفکرتال ورپسې ولم
چې مې یارلکه شاهین په نوې چم ولاړ
«سړي غرونه دي مېرمنې اړمونه» ۱
له جنته څخه څرنګه ادم ولاړ
رڼاورځه مې شوه هغه مهال توره
چې زما له خوارې برخې نه قلم ولاړ
که ګیلې لروله روبل اوډالرو
دافغان په ټکولوکې درهم ولاړ
خپلې ژبې ته خپه وم چې غوڅېږي
اوس وېرېږم چې له منځه مې توکم ولاړ
نن د «خیال» دزړه ټپونو ګزک وکړ
چې دعشق له درملنې یې ملهم ولاړ

---

۱: سړي غرونه دي ښځې یې اړمونه .
ښځه اونارینه دانسان دیوه سر،دوه سترګې دي ،په
دې متل کې چې کوم مفهوم ځای نیولی هغه یوائې
په متل پورې اړه لري اود قافیې تابع ګرزېدلی دی
اوبس .

## هینداري وهي

آشنامې کډه وکړه لاري وهي
له خواشینۍ مې زړه کوکاري وهي
بېلتون پرې زړې دغمونو کري
دژوند په دښته مې شیدیاري وهي
خپله څېره ورته ښکارېږي پکې
وزه له ښکر سره هنداري وهي
غریب یې تل دزړه په وینوګټي
شیخ یې په کلې کې تیاري وهي
اوس چې په لاس کې ماشینګنې لري
دوی له کېبلو سره خواري وهي
د زاهدانوعدالت ته ګوره
له ځانه سل ځله هوشیاري وهي
«لکه کاغی دزرکې غاړه کوي ۱
خپله یې هېره شوه بغاري وهي»
نجلۍ دعشق په نېزه وویشتمه
خیاله له زړه مې وینې داري وهي



---

۱: کاغي دزرکې غاړه کوله خپله یې هېره شوه .
کاغی = کارګه=کاغ =کوړاغ =زاغ =کارغه .

## پاړوګر راغلی یم

وعدې ته دې جانانه په ګودر راغلی یم
داځه زېړی مهال دی مازدیګر راغلی یم

انځورد سپینې خولې دې دغزل په بیه کاږم
دیدن ته دې مهینې په هنر راغلی یم

دعشق په پلوشوکې به دې وپېچمه ګله
ستاحسن ته ځرګنده لکه لمر راغلی یم

نغمې دبلبلانوکه دمینې سرول وي
نوزه هم درته ګرانه په غومبر راغلی یم

ګربوان مې که شکېدلای دی دزړه ښیښه مې پاکه
خپه نشې له مانه چې ببر راغلی یم

کمځی دې که هرڅومره بې اودې غوندې ماران دې
په دم یې اېلومه پاړوګر راغلی یم

ترڅو به د دسمال په اشارو سره غږېږو
د «خیال» مینه رسوا شوه په ډګر راغلی یم

## منه

زه له پېريانو تښتم ته راته دېب يادوي
خپله کوکارې وهې ماته مې غرېب يادوي
لاس دې په وينو سره دې، په بل تورونه وهې
لوړې مانې دې ګوره چې ماته جېب يادوي
ناصحه ځان بدلوه دوخت له منډو سره
زه دې ملا ته حيران ته دې تالېب يادوي
مريد دې وچې شونډې، تڼاک لاسونه ګرزي
اوس دې رښتيا نه مني ته ورته فرېب يادوي
مطريبه مه غږوه ،زړې سندرې راته
زه يې نڅا نه غوارم ته يې پايزېب يادوي
ولې نصيبه زما ،دژوند رقيبه زما
دمادعشق نيلي ته دبېلتون کرېب يادوي ۱
د «خيال» دزړه بلبلې، ترمخ دې زنې ښکلې
زه يې منه بولمه چې ته يې سېب يادوي

---

۱:کرېب په وزن د «جېب» =رقاب (په آس
باندې د سپرېدلو لپاره دزين پايډل)
په کرېب کې د «ک»توری ساکن دی

# ازمویلې

څو به زموږ برخه وي د ښتو په کېږدیو کې
ښارته خوو رتلای نشو ،لویان دې په ماڼیو کې
بیا به دې د سر د پاسه ټک وهي مېخونه
پام کوه چې ولاړنشې کابل ته په څپلیو کې
دغه ازمویلې دې لا نه دې پېژندلې
ساه له سږي باسي حرمونې په سلګیو کې
هلته کانټینرې ګرموي د مرګ لپاره
خښتې افغانان دې پخوي یې په بټیو کې
دلته هم په کلیو کې ژوندي سرونه رېبي
ستهٔ د پښتون وهي اختیار یې په پردیو کې
وایي چې« هم بوره هم بدنامه شولې خوارې »۱
هرڅه درنه ولاړل د ناولیو په ناندریو کې
ګوره چې« ډبرې هم کډې ته رغړې »خیاله ۲
موږ لکه ګلونه مړاوي کېږو په سپلیو کې

---

۱: هم بوره هم بدنامه شوه
۲: ډبرې هم کډې ځای ته رغړې

# مارچیچلی

ستادمخ په شیشه سره او سپین ځلېږي
که رنګونه په هنداره کې ماتېږي
ګرانه بیادرته راستون شوم مجبوري ده
«مات لاسونه خپلې غاړې ته ورلوېږي»۱
پټې خولې مې د سولګیو پت خوندي کړ
«مارچیچلی خو ،له پرې نه وېرېږي»۲
«که رښتیادې یاره زړه راباندې سوځي ۳
له رندو سترګو نه، هم اوښکې بهېږي»
درنګ په درنګ دوخت شېبې راڅخه تښتي
لنډژوندون دی د پناه په لورښوېږي
یو وار راشه چې ګلونه درته ویړ کړم
د سر«سترګې په بڼو کله درنېږي»۴
دزړه مینه په ډګر راسره وکړه
وایي «شنې خوځه په غلا نه خوړې کېږي»۵
خدای دې مه خوړوه هسې رنګه یاره
لکه «خیال» دې چې په مینه کې ځورېږي

-------------------------------------

۱: مات لاسونه غاړې ته لوېږي .
۲ مارچیچلی له پرې څخه وېرېږي
۳: که زړه سوځي له رندو سترګو نه هم اوښکې بهېږي.
۴: سترګې په بڼو نه درنېږي .
۵ :شنې په غلا نه چیچل کېږي

# آونګ

دا خوږ سيوري د چادی چې په ځنګ را سره ځي
زما د وطن خيال دی په غورځنګ را سره ځي
په سترګو يې که نشمه ليدلای له بهره
د فکر په هنداره کې يې رنګ را سره ځي
د نورو په ګېډۍ يو به يې ورنکړمه پانه
د ډېنتو هريو بوټی يې لوه نګ را سره ځي
افسوس دی چې يې وينمه بې شمېره پرهارونه
له ښاره ترمناره پورې ړنګ را سره ځي
د ګردې دنياګۍ په سر ارامه ارامي ده
يوازې د پښتون په کورکې جنګ را سره ځي
ببرۍ د ژوندانه مې ډوبوي د غم په سيند کې
د هرې ځپې غاړې ته نهنګ را سره ځي
که نوم مې د شېرينې تش په ژبه باندې راشي
له پاسه مې په سرباندې کلنګ را سره ځي
زما نصيب ته وګوره چې مارله مرګه بچ کړم
د ننې په لستونې کې اورنګ را سره ځي
هډوکې مې د مړيو ننښتېځي غوړې ترې باسي
دا پورې ګاونډی لکه آونګ را سره ځي
متل دی «چې درانه بارونه وړي خوراک يې ځوځ وي»
د «خيال» کډه په شاباندې ملنګ را سره ځي

## دټپونوغلبېل

تږی دوصال یم شرابونه ماته مه راوړه
زه لېوال دمینې یم جامونه ماته مه راوړه
راشه په سینه مې دټپونوغلبېل وګوره
سرترنوکه څړیکه یم دردونه ماته مه راوړه
موم غوندې بدلېږمه دښکلوپه منګولوکې
پام کوه چې وانه وړم لاسونه ماته مه راوړه
ګرانې ته زمادزړه ګاڼه یې پسول څه کوې
خپله ښایسته یې سینګارونه ماته مه راوړه
ژرنده دناورین زمادسردپاسه ګرزي
پرېږده د ویربادونورغمونه ماته مه راوړه
زه دومره تنکی شوم چې دمچ پښې مې ژوبل کړي
بس دی دخیال عشقه پرهارونه ماته مه راوړه

# بربښناګانې

بیا به پسرلی شي میناګانې به راځي
تورې شپې به لېږدي رڼاګانې به راځي
واورې به خپل سپین کفن ور ونغاړي له مځکې
خاندي به ګلونه ښکلاګانې به راځي
روغي به شي بیا دغه نوکاري د سېلیو
څانګې به شي پېغلې نڅاګانې به راځي
پاس به د وریېځو درمندونه په ګډا شي
ګرزي به پړکونه، بربښناګانې به راځي
شنه به چمنونه شي شنېلي به زرغونه شي
مستې تو تکۍ اوبوراګانې به راځي
بیا به د پردیو تېپوسانو پوځ ووهي
باغ ته د توتیانو بلواګانې به راځي
بیا به ګودرونه په منګیو ښایسته شي
«خیال» به ورته ګورې خنداګانې به راځي

## چا په مخه کړې يو

مور، خولا ترا و سه ولولو په مخه کړې يو
سپک د سيند ځګونه شو و څپو په مخه کړې يو
توره مو له تېکې نه د بل په امر وزي
با تې د زمري وهو بيزو په مخه کړې يو
نن چې د پېرو ونو کچ کولو زمانه ده
خپل کورونه نلرو خېمو په مخه کړې يو
خېږو په مرچل باندې سرونه مو په لپو کې
پا يلې ته يې نه ګورو ، ولجو په مخه کړې يو
څو به زمو ږ. سترګې وې د نو رو په جېبو نو کې
هر څه را نه پا ته دي پيسو په مخه کړې يو
مو ږ. خولا ترا و سه د خپل سر په بيه پوه نه يو
ځکه هديرو ته جنازو په مخه کړې يو
هسې خود خپلې ارادې خبرې کاندو
«خياله» چې خپه نشې پردو په مخه کړې يو

## برمته

چې مو غوښته ستا په زړه کې سمندره
دنهنګ په خوله کې ولاړه مرغلره
غمه ستونی مې له غربوه څخه ډک دی
نه مې چیغه له خولې وزې نه سندره
هرې خواته مې که بیایې درسره یم
زما زړه دې برمته ونیو دلبره
څو چې ته یې ګودرونه ښایسته وي
خوند خوتاو اخست زېړیه مازدیګره
مورې دې هېرشو وپه ماښیوکې راګرزې
«یودې بام دوه دې هواوې دې اختره»۱
«اوښ ته وایې چې اورمېږدې ولې کوږدی
وایي کوم ځای مې سم ګورې زوروره»۲
«چې یې لو ته خوښه نه وې دلوګرې ۳
لور په لوټه تېروي نه په ډبره»
تر رټلې «خیال» خوته ښه یې پېژوانه
چې دیارپه مخ زنګېږې بختوره

---

۱: یو بام دوه هواوې .
۲ :اوښ ته یې وېل چې غاړه دې ولې کږه ده، وېل یې کوم ځای مې سم دی.
۳:دلوګرې چې لو ته زړه نه وې لورپه لوټه تېروي.

## خوب

خوب وینم زنګېږمه له تا سره په تال کې
لاس مې دې په غاړه کې وي ستر ګې مې په خال کې
څنې دې زما له مړوندنو سره لوبې کړي
بوی دې دعطرونو وي چلېږي په شمال کې
دېب له پاسه راشي ماپه خوله کې درنه یوسي
ته را څخه پاته شې ویده په زرغون شال کې
غرونوته مې یوسي په یوغارکې مې ایسارکړي
سراوپښې مې دواړه سره ونغاړي په جال کې
توره تره ږمی وي تش یادونه ستا رڼاوي
سم له دې بلاوو سره ښکېل یم په جنجال کې
خپله یې له داړو څخه وینې دانسان ځي
زه یې رانیولی یم دمینې په وبال کې
وایي چې نوته دښاپېریو مینه څه کړې
سر به پکې وبایلې دښکلو په وصال کې
ته د ادم زوی یې ښاپېری خودد ېبانودي
تاسې شاته پاته یاست له موږ نه په کمال کې
کله چې راویښ شومه له خوبه څخه «خیاله»
فکرمې له دېب سره وو زړه مې په جمال کې

## چيغه

کله چې خاني لرم، په زړه کې کېميني لرم
اوس چې ملنګي لرم، غرور د پاچاهي لرم
زه که پرد ېسي لرمه، دغه بد مرغي لرم
نن خوبې وسي لرم، په کلې کې پردي لرم
بيا به توره وباسمه، زړه مې لا ياغي لرم
متې افغاني لرم، منګولې د زمري لرم
فکر د زلمي لرمه، شوق د پسرلي لرم
عشق د موسيقي لرمه ويارېې تاريخي لرم
دود، د خواخوږي لرمه، مينه انساني لرم
شورلرم مستي لرمه، خوی د غرڅني لرم
«خياله» څه خواري لرمه مسته شاعری لرم
توره مېداني لرمه، چيغه توپاني لرم

## پېغور

پتنګ ومانه په ځان دمينې تور
اوس يې شمعه کړوي په سر د اور
د بوه تړوله د رڼا په بيه درومې
خوپلتې خوارې ته پاته شې مخ تور
دا انګار به شي ترخپلو ايرولاندې
چې سپرغۍ له ځانه وېشي لورپه لور
په لمن يې د باروتو غبار ګرزي
ددي بڼ ګلان به کله شی سمسور
دلوونګو فصل لمرپه زړښت سپاري
خود غچ غبار يې پېټی شي د لور
که داشته تود وخي ځان ته خوندي نکړي
سره سکروټه شي پخپله سوی سکور
د ماليار په مخ کې چوتکی غوټۍ نښکل کړي
خو ياد ېږي يې بلبلو ته پېغور
«وزه خلاصه شوه په تېښته له لېوه نه
د قصاب چړې ته ورغله په کور»۱
چې په بېخ کې ورته کېږدي اومې خښتې
«خياله»تخت يې له بنسټه شې نسکور

---

۱: وزه (بوزه ) له لېوه څخه خلاصه شوه د قصاب کره ورننوتله .

# رنځور

په هره خوا چې ځمه دی ضرور را سره ځي
د یار د مینې غم دی لکه نور را سره ځي
هر ځو یې که د زړه له منځه و باسمه بېرته
د فکر په پرده باندې انځور را سره ځي
د زلفو هره ځو که یې لښکه د غو مبسې
پخپله په نخرو لکه تربور را سره ځي
د حق لېونی چیغه مې په ژبه باندې ګرزي
له دار سره مې برخه ده منصور را سره ځي
دا ښکلي چې زه وینم د هالند په رو تر دام کې
ارمان دی چې په مینه کې غرور را سره ځي
قفس مې د پښتیو شو د فیل تر پښو لاندې
د «خیال» د زړه بلبل پکې رنځور را سره ځي

## چېرې ولاړې

نه دې اورم له راډيو نه
نه دې غږ له تلو يزيونه
نه دې لوست په ښوونځي کې
نه دې څرک له پوهنتونه
نه دې شتون په سېنما کې
رټل شوې له روغتونه
نه دې توری په دفتر کې
ترې تم له کتابتونه
اې د «خيال» د ادې ژبې
چېرې ولاړې له پښتونه

## پاڅون

زېړی ګل یم له ازغي سره زرغون شوم
د خاټول غوندې په زړه کې ځګر خون شوم
کړی شپه د غم ګلۍ را باندې اوري
پاڼې پاڼې په لمن د سباوون شوم
د تو کم تو پیر مې نه وو خدای خوشته دی
د دښمن په ځنځیرونو کې پښتون شوم
د لیلا د کوڅې سپي را پسې غاپي
زه شکېدلای ګر بوان ګرزمه مجنون شوم
د دېب سیوری مې د سر د پاسه ګرزي
له بابته یې په خوله باندې زبون شوم
اوس مې چیغه بند ولای نشي «خیاله»
چې په پټه خوله کې زوړ و مه پاڅون شوم

په تندي کې مې چې ګورې هره ګونځه
دغه ټولې دي د تا د عشق له رنځه
ستا د سترګو د ښو ویشتلې غشې
ببرته وباسه زما د زړه له منځه

، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ،

که هرڅومره نوم وتلی په جهاد یې
په وهلو ټکولو کې استاد یې
چې کورونه ورانوې په هوانونو
قوماندانه مجاهد نه یې جلاد یې

، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ،

ته خو ، ښه يې چې غندلای يې شې واړه
دغه سرې او شنې دښمنې غدۍ دواړه
دی به څه کړي چې پخپله يې ترلې
په دايوه خواکې لکۍ په بله غاړه

، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ،

دغه لوړې څوپوړيزې ودانۍ
دکابل په هره برخه کې مانۍ
تاله کومه کړې ببره قومانده نه
نه دې مال وو نه دې پوهه نه ګډۍ

# نغارې

پيالې راډکوه چې نازنينې ته ورځم
دګلو دګېډۍ غوندې رنګينې ته ورځم
«زمانصيب ته ګوره چې غنم مې شي وربشې»
په لاره کې پيرې دي چې وربښمينې ته ورځم
متل دی چې «دګوډې لار په ژرنده ورغلې»
زما دغه مزل دی ديار مينې ته ورځم
«اوبه چې ترسرپورته شي څه يوه نېزه څه دوه يې»
ډوبېږم که رسېږمه سنګينې ته ورځم
دکلې په کوڅوکې نغارې دې غږوه يې
د لمردپلوشې په شانې سپينې ته ورځم
دلرې نه وا ښن دی په شېبو يې لنډومه
دعشق برخه خوږه ده چه شيرينې ته ورځم
پيغام مې ورته يوسه ترکوڅې دوصال باده
په مينه ورروان يمه مهينې ته ورځم
هرڅوېې که دا سيمې دي وښلې تنزيمونو
د«خيال» دغه تکل دی خپلې وينې ته ورځم

## تربور

بلبل په چیغو چیغو ځي غونچې د ګلو چور
ګلاب په زړه ټپي ښکارې رېدی په وینو سور
د پرخو رنې او ښکې له غوټیو را څڅېږي
ګل تاج له سرنه ورکړ بورا تېښتې ته مجبور
په ما پسې لا ګرزي ځارګران د ګاونډ یو
په لوټویې راماته کړه هنداره د شعور
په سر به دې بلا شي څوېې زهر وي په خوله کې
زمونږ خو تجربه ده «د لستونې د منګور»۱
نن تول د عدالت د مصلحت په تله کېږي
د حق نارې وهي په دار ختلی دی منصور
هرڅوک په دې نړۍ کې اول خپله وینه پالي
یو ازې پښتانه دي چې د ښمن ګڼي تربور
یو توره په لاس ګرزوي بل ګوته په ما شه ږدي
نن جنګ زمونږ په برخه ګرزېدلی دی دستور
خو بېرته که د امات زړونه را ټول شي سره «خیاله»
دا اور به د باروتو شي ګلونه د تنور



---

۱: منګور = مار (دخوست په ځنې ولسوالیو کې
منګیر ورته وایي مونږ د دبوال کړندي ته هم
منګور وایو چې تر چرمشکۍ لږ کچنی دی په
خونو کې پیدا کېږي او هغه یې بې ضرره دی.)

## خیبره !

که هرڅو مره دې نوم لوړ شمله دې بره
تور کاغان در باندې وختل خیبره
چې د استاد جګوڅوکو ولکه غواړي
دښمنان د رته راد رومې له بهره
ستا عزت له هرڅه پورته وو افغانه
فلک څه چارې در وکولې ستره
ته یې تل په توره وګټې پښتونه
د ملا غشی دې مات شي په خبره
د مرګي وبا دې روږدې شوه په وینه
نیم په لره باندې وژني نیم په بره
چې د خولې ګوله دې خوري ته ورته ګورې
ستا تر وچو شونډو جار شمه نهره
زه خو هسې رنګه هوډ لرم وطنه
چې دې پت درسره پالم تر ټکره
په جنت کې به مې هم د هیلو کور یې
د «خیال» ګل غوندې هیواده د زړه سره

## منجله

په زړګي کې مې اورونه دي خراب يم
دوطن په مينه پوخ لکه کباب يم
دبېلتون غمونو هسي رنګ نری کړم
چې له پوف سره ماتېږمه حباب يم
لاترڅو مې ځوروې دمينې رنځه
تن مې وګوره له غمه وچ رباب يم
«ړومبنيه عقله کاشکې چې وروستی وای»
اوس خوښکېل په منجله کې دګرداب يم
په دې پټه خوله مې پروت برغولی ښه دی
کنه زه خو له اوله انقلاب يم
راشه وڅېړه د «خيال» دزړه دفترې
چې دغم دبدوپېښويو کتاب يم

# غمازراځي

دښکلو میره څومره په نازراځي
لکه بلبله په مست آوازراځي
په سپینو لېڅو په سرومنګلو
دزړونوښکارته دغرونو بازراځي
چته درخوده په شوق مینه
دعشق رباب ته لکه شابازراځي
اتڼ یې زده دی ډول یې خوښیږي
سندرې بولې په وخت دسازراځي
زمادهیلو سپینه کوتره
دزړه شاهین ته په لوړپروازراځي
په مړوکتوکې اورونه وینې
دمینې جنګ ته نوی آغازراځي
لارې به څارو، غمجنه «خیاله»
مینه به پالو چې بیاغمازراځي

## دخاټولوجنډې

والوزئ وریښځواو راولونۍ زمزم
وشیندۍ په پاڼومرغلرې د شبنم
ښکارې دخاټولو دجنډود رپېدونه
رابه شي ګلشن ته نوی دورد پرتم
مستې به نغمې شي اورامستې به بلبلې
پورته به شي ښېرته تورې لړې د تورتم
بیابه وي د ښکلو تو تکیو اتڼونه
ښېرته به د زاڼو کتارونه شي راتم
ناڅي به ګلونه اوراپاڅي به عطرونه
ولاړي به شي ښېرته دغه دوړې د ماتم
اورې به د پرخو مرجانونه په شنبلیو
ګرزي به له «خیال» سره راګرزي به صنم

# انصاف

په یوه پښه ولاړیم د ګل پېټۍ مې په سر
رېدی د پسرلي یمه نڅېږم لروبر
د دښتو په لمنو بې اوبو را زرغونېږم
باران که په ما نه اوري ولاړیمه نهر
ګهیځ را باندې ولوروي پرخې مرغلرې
ډېر ژر یې پلوشې را څخه تښتوي دلمر
نسیم یې د شمال څپوته وبښي په هوا کې
وږمې، مې په عطرونو کې د مشکو د عنبر
ترڅو چې زه غوټۍ اوسم له سترګو الونیا یم
که وخاندمه وړانګو ته مانه پرېږدي خطر
له ښېخه مې ور وشکوي ځواني مې نیمه خوا کړي
په زلفو کې مې وټومبي پیمخې په هنر
سو که سو که مې پېغلې د تندي د ښکلا سیال کړي
له ځان سره مې لېږدوي ویالې ته برابر
خوښي او خنداګانې خوکوي د کلې مستې
رازونه وې له ما سره د نجونو د ګودر
خواله مې له سپین مخ او له سروشونډو سره کېږي
ترڅو چې زه تازه یمه پالي مې زورور
چې مړاوی شم، ما پانې پانې ورژوي ښکلي
په ګوتو کې مې مروړي بیا مې وا چوې بهر
انصاف د بندګانو خوهمد غسې وې «خیاله»
چې ګټه ورته نلرم وهي مې په ډګر

## پرتله

ستا د زلفو د ولول دغه تعبیر دی
چې زما په برخه تل د عشق ځنځیر دی
که هر څو یې پرتله کړمه په شعر کې
تر سپوږمۍ دې ښایسته د مخ تصویر دی
چې په جیب کې یې ټاپې وې د تورو نو
نن یې جام په لاس نیولی هغه پیر دی
مریدانو یې اسرې ورته راوړې
د دانې حریص پخپله په دام ګیر دی
چې زما د وطن واګې رانه غواړي
د دې سرو او شنو غدیو څه توپیر دی
«هګۍ دلته اچوي کوټ کوټ یې هلته»
د بهیر په برخه دغه رنګه میر دی
چې منګولې یې د «خیال» په وینو سرې وې
هغه بیا زموږ په کلي کې آمیر دی

## لوه نګ

بیامې دبرېښنا په شانې تېره شوې په څنګ
اوړې په سوکه سوکه را اوړې په غورزنګ
لاردې ترګودره ده زمونږ دکورله مخې
درومې په وربوزباندې،رادرومې رنګ په رنګ
ونه دچنارلرې، ښایست دې دنرګسو
خوله دې سپینه پوڅه ده، په شونډوکې دې بنګ۱
ستاڅنې دمشکو اوګلونوخوشبویي لري
وشینده عطرونه اوراوپاشه لوه نګ
کوردې رانږدې شه لا ،غمونه دې شه لرې
مینه د زړګي راکړه، له سترګوسره جنګ
ستاځواني دې ښکلې وي دخیال ګربوان دې څیرې
ګرزم له درخوسره راګرزمه ملنګ



------------------------

۱ : پوڅه = پنیر

## شات

نه دې بولې شته نه لاړې نه دې پچه
خوهرشی مرداروې ناولیه مچه
دمچۍ غولوته وګوره چې شات دي
پاچهان یې تل څټي په زیاته کچه
دوربښمود چنجیو خولاو یاړدي
چې یې اغوندي هرخان دبل له غچه
ناخبره یې ستاخوند په ژبه وکوت
دیارخوله دې و رترخه کړه دغم مرچه
ناپوهي هغه بلاده که پې واوړې
تل به لاس ترزنې ناست یې برخه وچه
نه دې شات وي نه وربښم نه پلاوونه
آزاد ژونددې وي په پت کې بې له کوچه
ستاد سترګو دکجلو دارو راکړه
زماتورې سترګې سرې دعشق له لچه[1]
لابه څود رپسې ګرزمه ستومانه
خدای دې مه لره د «خیال» له غوټې بچه
۷۲

----------------------------------

۱: لچ = دسترګوناروغي .
دایوه ساري ناروغي وه چې پخوا په کلیوکې ډېره
زیاته وه دپښتوژبې په لنډیواوکاکړي غاړوکې یې
ډېره یادونه شوې لکه :
شینخالۍ په کلې ولاړه
یابه لچ راوړي یا غاړه
غاړه = والګی=ریزش ،زکام، کله په سکاروې هم اوړي
غاړه =آواز=سندره لکه: «پلانی ښې غاړې لري»
غاړه = غړۍ
غاړه = څنډه ،لکه دګودرغاړه اونور .

## ناغه

بيرغ به دې په ستر ګو ښکلومه چې درځم
ګلونه به له تانه جارومه چې درځم
ناغه مې دزړه سردرته ساتلى دى هيواده
ګيلې دې په لېمو باندې منمه چې درځم
دمينې ولولې دې چې رسوا را څخه نشي
په خونه دسينه کې يې ساتمه چې درځم
تصوير دې لکه ګل دپسرلي افغانستانه
دفکر په زانګو کې زنګومه چې درځم
په فال باندې ايمان به په يرغوې کې خوندي کړم
تقديردى په تدبيريې اړومه چې درځم
چې ستا دزړه باورد «خيال» په مينه باندې وشي
له ستر ګو څخه اوښکې تويومه چې درځم

## سکنې مابنام

سترګې دې سرې، بڼه دې ژېړه، زلفې دې سپورې
تر مخ دې جارشم ولې خپه یې د سپوږمۍ خورې
پلوشې تښتي لمرپناه کېږي رڼا ډوبېږي
سکنې مابنام دی شنه یې لمنه رڼه یې ستورې
اوس لاخزان دی شنبلې دې مړاوې سبلۍ چلېږي
په باغ کې نشته زېړی ګلونه څانګې سمسورې
زړه مې خپه دی دژوند ولجه مې دغم تونه ده
په ښارکې غله دې تیږې را ولې زما په لورې
تل خوبه نه وي د ویرد پېښو هسې ناخوالې
پښتانه وایي «کاسې د کبرآخر نسکورې»۱
دغه نړۍ ده په لوړاوځوړکې ترڅو چې پایو
«وایي چې نه مرې لابه یې واورې» تردې لانورې۲
شپه به رانغاړي دپلوپیخې ترسباوونه
بیابه په بڼ کې غوټۍ غوړېږي پرخې به اورې
ته به دزلفوعطرونه وبښې وړانګې به لونې
پېکی به ږمنځ کړې سترګې به تورې ګاڼه درپورې
وږمې به ګرزي ګېډۍ به خاندي څانګې به ناڅي
زانې به راشي «خیال» به اتڼ کړي ته به یې ګورې



---

۱: دکبرکاسه نسکوره وي .
۲: چې نه مرې لا به واورې .

## توښه

ما ته وايي په خلوت شه دنيا پرېږده
د دوزخ د اورله وېرې څخه رېږده
وايي ژوند لکه د سيند څپه تېرېږي
دا سپېره نړۍ فاني ده ځنې لېږده
شيخ پخپله نعمتونه دلې غواړي
بل ته وايي د دې رنګې توښه ورې ږده
که يې ورسېږي وس ترکو مې ښکلې
په مننه يې نيولې ور ته غېږده
زه چې پل د يار د کلې په لور ږدمه
ډاروي مې چې ګناه به لري مې ږده
اوس که غواړې چې ماو پېژنې ځوانه
نو د «س» په ځای د سيال په سرکې «خ» ږده
«خياله» لار خود چړو په څوکو نه ده
د انصاف په سمه کرښه قدم کېږده

## دغم مېچنې

شېبې درپسې شمېرمه دلبره راشه بيا
زمادسترګوتوره دزړه سره راشه بيا
دمار اوده اسانه ده لټکې په موړ روږدې ۱
درمل ته يې حيران يم پاړوګره راشه بيا
چې واردې خطانشې زه به لارې درته ځارم
منګی په اوږوکېږده ترګودره راشه بيا
«بنګړي په کې ماتېږي دياری دغه دستوردی» ۲
پخلابه دې کړم ببرته مروره راشه بيا
«سکروټې په ببوزې باندې نشي سړېدلای» ۳
خپل چم راته راوښيه هنره راشه بيا
لمن دتره ږميو په ګلونه راخوره ده
ګلشن په تارڼاده برېځره راشه بيا
لشکې دبڼولکه مرمي راباندې اوري
ټپونه مې شړېږي درمانګره راشه بيا
ترڅوبه لامېچنې په موړ ګرزي دغمونو
د«خيال»سترګې په لاره دې اختره راشه بيا



---

۱: لټکه = دوه سری مار
۲: په ياری کې بنګړي ماتېږي .
۳: سکروټې په ببوزې نه سړېږي .
ببوزی = پکی = بادپکه

## سپم

ماته راکړه لږ د مینې مست شراب
چې مې وباسي له زړه څخه خناب
هر یو ول دې ځنځیري لیکلی خط دی
چې مې ولوست ستا د زلفو درست کتاب
دا چې شنه چپنه اغوندې چنګښې
ستا په لوبو باندې پوه یو په حساب
ستنې خپله سپم نیولی وو سپینسي ته
په ټپي زړګي يې ننوت تناب
«چې کرې هغه به ورېبې کرکره»
دژوند فصل دی وبال وې که ثواب
په نیلي غوندې خولی یې خطا مشه
د اوبو په سرپوستوکی دی حباب
لا د سر سلامتي د لیلا غواړم
که هر څو یې کړم د عشق په اور کباب
دا دې څه لېونی مینه وکړه «خیاله»
چې یې وتوږلې وچ لکه رباب

## ګودره

دنورچينه دې وچه مه شه لمره درسره يم
دا وړانګې چې رالېږې خياليګره درسره يم
چې پټ دې له بې پتونه خوندي اوسي وطنه
ستامينې ته راغلی يم ځګره درسره يم
يوغږدجګوغرونويم له ګران افغانستان نه
له کوټې ترکابله پښښوره درسره يم
دشعرپه ولولوکې به دې هم راسره پالم
له لاسه به دې ورنکړم ډګره درسره يم
چې بيادې څوک په وينو باندې ونه لړي غاړې
عزت ته دې ولاړيمه ګودره درسره يم
دخيال دسرشمله يې تل ترتله هسکه اوسې
زمادهيوادعشقه دزړه سره درسره يم

## کارمساله کوي

سرپه اوږو ګرزوي پتنګ بلې ډېوې ته ځي
زړه يې په لمبه ايښی د مينې تماشې ته ځي
«ځوک چې ورته وو ايي افغانه غوړدې سپي يو وړ
خپل غوړونه، نه ګوري په منډه د سپي خولې ته ځي»
څه ګټه لنجرومې ته چې خپله خوله يې توره کړه
ښه خوسلايي ده له رنجو سره لېمې ته ځي
وار دی د شيخانو دبربنډو ګناهونو يې
پام يې له پيالې سره لاسونه يې تسپې ته ځي
«خواره دې شي مينځه چې د مينځې کالي وينځي»
ګوره پهلوان ته د لاسپو څې ارادې ته ځي
«چاري مساله کوي اولا پي يې بي وهي»
تورې پښتانه وهي ويارونه يې شملې ته ځي
وايي «د مېږي لپاره پرخه هم توپان شي»
«خيال» غريب ته ګوره چې د هري بلا خولې ته ځي

په زړه کې شور لرم بلوا غواړي
لېونی مینه برملا غواړي
دزمانې هسې دستور ته ګوره
«ږیره زما واک یې ملا غواړي»

------------------

چې دحسن خان دې راغی زه یې ګرو کړم
دبڼو په بزګرانو دې هم لو کړم
اوس غوبل دبیلتانه رابادې ګرزي
دالف په شانې سیخ وم عشق دې«و» کړم

## د دېب سیوری

نوم دې لښته رنګ او بوی دې د ګلاب
جام د بنګویې مستي دې د شراب
زما زړه پرې غړوي د عشق سندرې
تورې زلفې دې تارونه د رباب
د منشور غوندې يې و ښيي په هرلورې
پسرلی دی د رنګونو ښکلی باب
دا زموږ انار که څومره خوندوردي
خوددوئ خورمابه اخلو په ثواب
«که وروري سره کوو دغه متل دی [1]
« چې ترمنځه به تاکلی وي حساب
اوس ملا د خپل چړي په چیغه درومي
زړه مې ځکه شو دغم په اور کباب
دغه دروند سیوری خو بیا دهغه دېب دی
چې ښایست د شاپېری يې کړ خراب
چې يې تېر کړ د زندان په پنجروکې
همدغومره وود «خیال» غریب شباب



---

۱: وروري به کوو حساب ترمنځه .

## لټون

چېټه مروره ده په غرو ،ورپسې ګرزم
څه وکړم مین یم په پلمو ورپسې ګرزم
ګرزمه په دښتو او راګرزم په غونډیو
سترې او ستومانه په غرمو ورپسې ګرزم
«وزمه له کلې خوله نرخه وتی نشم» ۱
دغه زموږ دود دی په کلو ،ورپسې ګرزم
څارم ګودرونه او راغوا ړمه باغونه
سپورورپسې نه ځمه په پښو ورپسې ګرزم
وایي چې«مړه ګېډه فارسي وایي»کابله ۲
زه خو په هرځای کې په پښتو ورپسې ګرزم
شونډې یې موسکا لري لېمې یې مرورې
«خیاله»که خپه وه په توبو ورپسې ګرزم



---

۱: له کلې ووزه له نرخه مه وزه
۲ : مړه ګېډه فارسي وایي

## هیواد ته

که مې سر دی که مې مال دی که مې تن دی
له دې ټولو څخه خوږ را ته وطن دی
د جنت د نعمتونو نښانې دي
که یې دښته که یې غر دی که چمن دی
ویاړ او پت مې له هیواد سره تړلې
که دا نه وي نو منلی مې کفن دی
نور څه نشته چې یې جار کړمه له خاورې
اوس مې نذر ورته اینښی خپل بدن دی
که هر څو مره ګوزارونه یې خوړلې
لا تر اوسه له هر چا څخه پتمن دی
که یې لرې شم له غېږې هم د باندې
زما زړه یې په نامه باندې مین دی
زر د چوبې ته زبېر لرګی مه وایه زیاره
په پښتو ژبه کې دغه کور کمن دی
د «خیال» زبېر زبېښلی مخ سپېره یې بڼه
د وطن د عشق له غمه لوغړن دی

## پسرلي ته

د بهار موسمه زېرى مې د رباندې
نند ارې ته دې رنګونه راروان دې
رنې پرخې امېلونه درته پېئې
په ګلابو کې عطرونه درته خاندې
پورته ګرزي درمندونه د وريېځو
لاندې ګڼې مرغلرې دباران دې
پلوشې دې ښكلوي د ونو څڼې
دغوټيو امېلونه دې غړواندې

## ۳۱

خو افسوس دى لاتراوسه پسرليه
له هو اخخه مرمي را ،اوري لاندې
لاټانكونه ورانوي دخلكو خونې
په هرلورې ژړاګانې دي يا ساندې
لاسرونه پرېكوي دبل په امر
غليمان مولاد وينو په ارمان دې
«دانړۍ خو په امېد خوړله كېږي»
«غركه لوړدى لاريې شته ده په سرباندې»
«وايي ژرنده كه دپلاردده هم په وارده»
داولاړبهيربه ببړته ځي په وړاندې
بيابه تالندې برېښناوې سره ناځي
شين توتيان به اتنونه درته كاندې
«خيال»به بياد سباوون ګلونه ستايي
د ګلشن ورېمې به ګرزي لاندې باندې

دیوروپ نجونې دې مستې اوبربنډې
خپلې څنې پرې کوي لمنې لنډې
دلته مینه کول عیب نه یاد یږي
خو زما په اوږو باردې دغم پنډې

---

«وایي چې اوبه که څومره زورلري
ځمکه ورته خپله هومره سورلري»
وینه یې که هرڅومره ارزانه ده
مرګ د پښتنو خوګوره پورلري



ستاداتورې تورې سترګې زماخوښې
زوړ دستوردې ګرزوي راڅخه ګوښې
یووارراشه له نژدې مې تپوس وکړه
«یاردیاردپاره خوري دغوایي غوښې»

---

ستامینه مې په وینه کې روانه په سیالي ده
پالنه دې په ما افغانستانه په سیالي ده
حیران یمه دوران دزمانې ته چې را اوړي
«میړانه په سیالي وه اوس سپېتانه په سیالي ده»

## ګرم نشته

په زړه باندې رنځوريمه صنم را سره نشته
د رمل ته يې حيران يمه ملهم را سر نشته
په مړينې نڅاګانې دژوندیو په ماکاندي
تر اوسه هم لا فکر د توکم را سره نشته !
چې برخې سره و ښې تل زما پله وې سپکه
خپل حق غو ښتلی نشمه قلم را سره نشته
د بل په ژبه و ېلای شم سندرې او شعرونه
پښتون يمه د خپلې ژبې غم را سره نشته !
د حسن رنګينې مې له بار وتو سره ولاړې
بې رنګه پسرلی یمه موسم را سره نشته
هر چا ته مې چې لاس د ياراني ور غزولی
په لاس کې يې خنجر نیولی سم را سره نشته
نو رمه وژنه صياده فرياد ونه د بلبلو
د صبر کاسه ډکه شوله زغم را سره نشته
«هم غل وايي چې غله دي هم کوربه وايي چې غله دي
جزا خو به يې «خيال» ګالي چې ګرم را سره نشته

دشهسوار «سنګروال» دښکلې شعر په اقتفا

## بړبوکۍ

ښکلی سباوون وومازديګر وخوړ
توري تروږمۍ را څخه لمر وخوړ
باغ مو دخزان سېلیو وڅاندهٔ
ږیرو له منګیو نه ګودر وخوړ
بیامو په دې غرونو کې وباګرزي
ژوند د پښتنو یې لروبر وخوړ
روږدي شوه په کلیوا و کوڅو کې
سم یې له وسلو سره لښکر وخوړ
وایي زمانه اخره شوې ده
ګوره چې ګیدړې هم زړور وخوړ
دېب د شورویانو خولاڅه کوې
توغ دآزادۍ یې برابر وخوړ
جاردې شم هیواده «خیال» ته وخانده
ستاد عشق غمونو خومې سر وخوړ

ملایکې

چې هرې خواته خوځمه پیرې راسره ځي
ددوواوړوله پاسه پرښتې راسره ځي
زمادعملونوحسابونه راته لیکي
د ورځې ترماښامه اودښپې راسره ځي
که زه پخپله سم یمه نوښه مې راته کاږي
خوپل چې بې ګودره ږدم کږې راسره ځي
چې کورته راروان شمه په سترګوکې مې ځاري
له ست کولوپرته مېلمنې راسره ځي
که ښې چارې مې ولیکي دښې اوږې ملکه
په ورځ داخرت کې به پیالې راسره ځي
غلمان به په ماڼیوکې نڅاوې سره کاندي
دحوروبه وربښمینې کجاوې راسره ځي
دباغ په رنګینوکې به سندرې سره بولو
پیالې به دشرابوپیمانې راسره ځي

۹۲

ډولونه ربابون به غړېږي هرې خواته
اتڼ خومې کلتوردزمانې رسره راسره ځي
له پاسه به دشاتو بارانونه په ما اورې
دلاندې په ویالوکې به شیدې راسره ځي
شیطان به ددوزخ له پنجروڅخه راګورې
دمشکواوعنبروبه وږمې راسره ځي
خوبرخه ددنیا مې له ازله خواره شوې
دژوند په هره پېښه کې خطرې راسره ځي

دیوې بلا په خوله کې یم په بله باندې اوړم
چې کومې خواته ځمه زولنې راسره ځي
زما په ګرېوانه باندې د اوښکو مرغلرې
د سترګوله چینو څخه رڼې راسره ځي
دا اوس مې په ټټر باندې مېچنې ګرزي خیاله١
ډګرته چې راووزم زلزیلې راسره ځي

## ۹۳

---

١ : مېچن = دلاس ژرنده = بې اوبو ژرنده .
مېچنه په لاس تاوېږي ، اوړه يې لوا ړ دي او ارغستلې يا اوګره ترې جوړوي .

# کاشکې

زه به درشم چې ګلونه درنه جار کړم
دلوونګو خوشبويي به دې نثار کړم
لکه ته چې ځنګه ژوبل شوې هيواده
زه پخپله ستا غمونو هسې خوار کړم
چې دې ياد په هر محفل کې چېرې وشي
خدای خو شته دی په نامه دې افتخار کړم
د وجود وينه مې ستا د سرخيرات شه
که داغرونه اورغونه دې ګلزار کړم
ستاله دغه لوربيني نه مننه
چې د ميني په بهير کې دې مهار کړم
کاشکې زړه مې د نظمونو تومنه مومي
چې د شعر په مرغلرو دې سينګار کړم
چې داهره يوه غدۍ درباندې راغله
ستا په مينه کې يې شو مه د انګار کړم
تل د «خيال» په زړه کې دغه ارمان ګرزي
چې دې غاړې ته زېړي ګلونه هار کړم

# پایله

دزاهد په خوله کې ګرزي سپينې حورې
دجنت په نعمتونو کې مشهورې
دی پخپله نذرانې ګڼي په ګوتو
موږته وایي چې وهئ په جنګ کې تورې
اوس يې پای شو دهيوادلپاره دغه
چې له خپلو ځالو ووتې مستورې
نن چې ځنې دوطن ګلالۍ وينې
دګاونډ دتورمخانو دي مزدورې
چې يې مچ په پلونه پرېښودله نازه
په عربوکې شيخانوته مجبورې
څوک چې پاته شوې دلې روغې رمتې
لوغړنې خوياکونډې دي يابورې
نه يې مال شته نه خواړه نه درملنه
«خياله»ګرزي په غمونوکې رنځورې

دزړه غږ

څه راته خاندې ګودرخونه یم
ګوډی د ویر شوم اخترخونه یم
ولې مې څارې پخپل وطن کې
سپېره کودی یم ګوهرخونه یم
کلی زما دی واک یې دتا سي
ترټې مې څته سوالګر خونه یم
جهادچې فرض وو ټولوادا کړ
اوس چې غریب شوم رهبرخونه یم

۹۲

دشګو پانړ شوم د رود په غاړه
ورو ورونړېږم کمرخونه یم
زه یوافغان یم غلیمان ډېردي
توره لرمه لشکرخونه یم
مه رانه تښتە دهوسۍ خورې
مین به یمه خطرخونه یم
څپانده سیندوم په خوړ بدل شوم
غبرګې ته راشه ژورخونه یم
«چې برخې وېښې مېړونه ګوره»
ښکلی زلمی یم ببرخونه یم
لږ مې درپت کړه ترپلولاندې
«خیال»درسره دی بهرخونه یم

## جرس

که يې غشي دي که دام دی که قفس
که يې چوف دی که يې کوډې که محبس
څو چې موږ په بهيرونو کې روان يو
د کاروان سره به زوږ وي د جرس
د هيواد د غمېږې مينه مې په زړه کې
لکه وينه دا سې ګرزي هر نفس
که غليم درته هر څو مره ګلالی شي
په منګولو کې يې مه ورکوه وس
«چې پيشو يې د پخو غوښو کشۍ کړه» ١
زما صبر خو دې خدای لره وي بس
«که د سرو زرو چاړه دې وي په لاس کې ٢
دا متل دی څوک يې نه منډي په نس»
«خياله»زړه دې د لونګو خوشبويي شه
چې په خپلو غرو يې وښې په هوس



---

١:پيشو يې دغوښو کښۍ کړه .
: پيشو= پشي = پشه = پشک .
: کښۍ=ساتونکی=پيره دار=محافظ=څارګر
(په تېره بيا دکروندو ،باغونو او کښتونو لپاره .)
٢:چاړه که د سرو زرو هم وي سړی يې په خپل
نس نه منډي .

## ګلاب

په زلفو کې مې وتړو مبه ګلاب راغلی یم
وربل ته دې له یار څخه ځواب راغلی یم
له څانګې یې راپرې کړمه ډالۍ د تالپاره
مامه مرووړه په ګوتو کې خراب راغلی یم
په رنګ کې ستا د مخ سره سیالي ته لویږدمه
ځواني مې درنه جار شو له خناب راغلی یم
ګلپاڼې مې لانه وې غوړېدلې سباوون ته
بې وخته نیمه خواشوم په عذاب راغلی یم
د زنې په خولو مې اوبوه تازه به اوسم
چې مړاوی درنه نشمه کریاب راغلی یم
یوه زېرمه د عطرو نویم یو راز خوږې مینې
د «خیال» کرلی ګل وم په شباب راغلی یم

## کجل یووړ

زړګی مې له کوګل څخه منګول یووړ
آرمان د خوږې مینې مې وربل یووړ
یو مرغه وو سلو لو مې ورته ایښې
صیاد د زمانې رانه اول یووړ
بلبل د پښتو ژبې مې له بڼ څخه
د خاورولاندې قبرته کابل یووړ
تاریخ مو له لرغونو خزانو سره
د سیمې غلیمانو په یرغل یووړ
مشال دیار د مخ زماله لاسه
بېلتون له پلوشو سره په چل یو وړ
یو عشق د ولولو مې د وطن په نوم
د شعر په مرغلروکې غزل یووړ
د «خیال» د زړه بورایې په لټون ووچې
وصال د تورو سترګو کجل یووړ

که څوک ښه وايي که بد وايي که رد
له آمو تر اباسينه مې خپل حد
زه خوشحال د چا په زيره دعوه نکړم
داوطن مې هم د پلار وو هم د جد

-------------------------

له ولجو سره دې نه يم څلوربوله
ما د ښکلې خاورې مينې ته دربوله
که مې سر د خپل وطن په مينه ورکړ
دژړا په ځای سندرې په مابوله

## د کوچیانو غږ

هرګهیځ له ځګرخونه سره لېږدو
موږکوچیان یو له بېلتونه سره لېږدو
خپلې کډې باروو دچرګ په چیغه
لوڅ لغړله سباوونه سره لېږدو
ورشوګانې مو دغلو په ولکه ولاړې
لکه زانې اوس له یونه سره لېږدو
دخېمو زړې تړانګې مو په شادي
درپه درله شواخونه سره لېږدو
بې منزله پړاوونه دي وهو یې[۱]
وږې تږې له ژوندونه سره لېږدو
دتوپان په اوږووبار دمرګ په لورې
دغمونو له تړونه سره لېږدو
لاترڅوپورې به ګالو دغه ستونزې
«خیاله» راشه له غبرګونه سره لېږدو



---

۱: پړاو = تم ځای = فرسخ
پړاو = مرحله =(دپړاو اصلي مانادکاروانونودتم کېدلو ځای ووخو دتلوراتلو اولېږدېدنې دعصري وسایلو د رامنځ ته کېدلو سره سم پخوانیوکاروانونواوپړاونوهم نوې بڼه ونیوله اوپړاو دنویوارتیاوو له مخې خپل ځای مرحلې ته ورکړ ځکه چه پښتو ژبې مرحلې ته کوم نوم نه درلود نواوس پړاودمرحلې په مانادودپیداکړاوکله چې پخواني شوروي اتحاد دجدې په شپږمه نېټه په اقغانستان یرغل وکړنو ،نوې مرحله او یا نوې او متکامل پړاودومره ډېراستعمال شوچې دهغه اصلي مانابېخي هېره شوه . ) له کابله تر غزني پورې دلارې واټن شپږ پړا وه وو .

# چړايي

ته چې سترګې توروې په سلايي
مابه وباسې له ښاره جزايي
چې د ځنيو توري لړې دې باديوسي
لکه تورماران چې ګرزي هوايي
ماد زلفو په دورو وهې له پاسه
چې درخبره مه دعشق په چړايي
اوس چې عمر تېروم په پرد ښسي کې
په ديدن پسې دې ګرزم سودايي
دوطن دميني تاوته خولاګوره
کړوي مې لکه اور دکړايي
چې در وګرزمه بېرته له بهره
مستوه مې دخندا په دوايي
که دې پام راباندې نيسې دزړه سره
ستاله ځنګه به دېره شم کرايي
وايي هله زلزله راشي په ځمکه
چې ستومانه شي ښکرونه دغوايي !
چې د «خيال» په وطن هره غدۍ راشي
غمازان يې بولې برخه طلايي

## د اسمان تېغنه

چې پرون يې په ماولګاووتور
اوس خودوئ لره پخپله شو پېغور
«که دبل لپاره ځاکيني په پټه
دی به خپله په کوهي کې شي نسکور»۱
ټول وطن يې رانه وشپېلاوه لاړل
«مور،خپل پور ورځخه غوا ړودوئ لانور»۲
لا يې سر ورباندې خلاص نه دی په کڅه
چې«د سيال خواړه يا پوردې يا پېغور»۳
که هرڅو د اسمان تېغنه ګرزي پورته
سريې مځکې ته راکوز دی لکه ښکور
«لا په لپو وچوي د سيند موجونه» ۴
نه يې بر ورته مالوم دی نه يې سور
خوپتنګ که د ډېوې په سر کړېږي
د خپل سرسودا يې بيه ده د اور
چې د «خيال» دبخت توتي له ګورته ووت
نه يې پته په بهرشته نه په کور



---

۱: چې بل ته ځاکيني پخپله پکې لوېږي .
۲: مورِ خپل پورغوا ړو دوئ لانور .
۳: د سيال خواړه يا پوردې يا پېغور .
۴:درياب په لپه نه وچېږي .

## ډوله وهم دې چېرې

عشقه جنون دې چېرې خيالي ليلا دې چېرې
ځيرې ګرېوان مې ګوره ځمه صحرا دې چېرې
زمادزړه په پولو بېلتون خېمې وهلي
وايه غورزى دې چېرې بله بلوا دې چېرې
«ته چې له ستر ګو ځخه ميده رانجه پټوې»
دبڼو غشې چېرې دمينې غلا دې چېرې
ځاى دې دمخ په غولي وړانګې دې شونډوته ځي
پېزوانه زانګې چېرې زېړه رڼا دې چېرې
له پورې غرونوسره ستا ازانګې ګرزي
«ډوله وهم دې چېرې دغرډنګا دې چېرې»۱
ځرک له ختيځه وهي وړانګې لوېديځ ته لېږي
لمره راخېږې چېرې دنور رڼا دې چېرې
ستادقلم په ځوکو دساندوځړيکي ګرزي
«خياله»وطن دې چېرې دغم ژړا دې چېرې

## چل او ول .........

ته چې سترګې تورووې زه درپوهېږم
زړه مې بیا ټکوروې زه درپوهېږم
په دې چل کې خویو ول لرې چلبازې
غوړې څڼې سپوروې زه درپوهېږم
نن دې غشې د ښو په ماشه کړې
چې په چا یې اوروې زه درپوهېږم
که هرڅو مره په نخرو را سره ګرزې
زما مینه نوروې زه درپوهېږم
چې زما د زړه جنډې دې راکږې کړې
بخت مې بیا نسکوروې زه درپوهېږم
تورې زلفې دې دورې د محتسب دي
چې مې څومره پېې وهې زه درپوهېږم
ته هغه نوی توپان د یوې غدۍ یې
د «خیال» کلي ورانوې زه درپوهېږم

پو ښتنه

ما و ګوره ریباره ښکلی ځوان ی یم کنه یم
درخوته یم راغلی ادم خان یم کنه یم
دعمر په اوږدو کې زولنې دي شرنګوم یې
زندان زما په برخه دی افغان یم کنه یم
کاروان د سباوون مې د ماښام په ګوتو کېوت
دژوند په تربږمیو کې روان یم کنه یم
بهار و مه رنګونه مې سپلیورانه یوورړل
اوس زېړزبېښلی بربېښمه خزان یم کنه یم
چه واک د آزادۍ مې دغلیم په ولکه درومې
په توره کې اتل دهر زمان یم کنه یم
په مځکه ننوزم کږولی مې څوک نشي
څټک دغلیمانو ته سندان یم کنه یم
له غرونو ګړنګونو څخه سرباسمه «خیاله»
دژوند په بدو پېښنو کې توپان یم کنه یم

# غلبېل

زه شاهین دلوړو غرونو وم تا اېل کړم
یاره څنګه دې دځنیو په دام ښکېل کړم
چې مې کورته یرغمل درسره بیایې
زه خوخه لېونی نه یم چې به ځېل کړم
مین زړه دې برمته راڅخه وړی
لکه ستوری له مداره دې رابېل کړم
که دمینې ګړندی دې نه رالېږدي
راته وایه چې مې وینه درته تېل کړم
په وطن کې وچکالي ده لامبوزنې
رنې پرخې به د اوښکو درته سېل کړم
خپل ټټرمې لکه ډال درته نیولی
دېښو به ستنګرونو دې غلبېل کړم
ستاله هسې لوربینې نه مننه
دیار «خیاله» چې دې غاړې ته امېل کړم

# غمی

غمی زما خوږ ورور وو البته زما د پنځو ورونو څخه چې څوک شهید او څوک پخپل مرګ له دې نړۍ څخه ولېږد بدل غمی مې وروستنی ورور وو چې د همدې کال ۲۰۰۲ د ډیسمبر د میاشتې په ۱۲ نېټه یې له نړۍ څخه سترګې پټې کړې ،له همدې کبله مې له دې لاندې شعر سره د خپل مات زړه څړیکې د شعرله ولولو سره ملې شوې، الله دې پرې ورحمېږي .

زړه مې شین دی له غمونو مې زړه شین دی
نن مې بیا د سر په خونه کې ناورین دی
د غمي د مرګي غږ را باندې وشو
چې له رنګې د نیا ګۍ څخه یې تلین دی
ژوند مې هسې هم روان وو په سکروټو
دغه ویر په ما له هر څه نه سنګین دی
خپل ټټر مې هرې پېښې لره سپر وو
اوس مې ټول بدن چې وخوځې خوږین دی
په هیوادکې لاد وینو باران اورې
زړه مې ځکه د غمونو اباسین دی
د ژوند ونډه مې د څړیکو له یه پانګه
«خیال» چې سترګې غړولې دې غمګین دی

--------------------------------

دمرګي ښامار راغلی دی غمی وړي
زه يې وينم له ګوګله مې زړګی وړي
دلېمو څخه مې وينې راڅڅېږي
چې زمادبخت له څانګې نه ببری وړي

-----------------------

غمی تل راڅخه ولاړ او زه په غم کې
له سوچونو سره پاته په تورتم کې
په هغه باندې دخاوروامبارپربوت
زه يې پرېښودم يوائې په ماتم کې

## نسکور

یو مې کلی رانه پاته یو مې کور شو
یو مې عشق دګل وطن راباندې پور شو
تشه لاسه اوس به خپلې ګوتې مروړې
چې یرغل دبرېبکیو په دې لور شو
«پکه دغه دې لابله لو یه سپکه» ۱
دزاهد دګناه تور ،راته پېغور شو
دازمالېونی زړه کله صبرېږي
دجنت په شان هیوادمې راته اور شو



«اوس واده دبسوګۍ ورځخه جوړدی» ۲
چې دجنګ غبارموکم نه شولانورشو
«یو مې تورې پیشولاس په خوله ځټلی» ۳
جام دبخت مې په یرغوې کې نسکورشو
یوګزمې دبېلتانه راسره ګرزې
بل مې تن له ډېره غمه سوی سکورشو
داشناګړګوتي ځنې غوړې نشوې
نن مې ځکه دخپل مخ پستوکی سپورشو
دوطن دغرونوباده راچلېږه
که ګلشن د«خیال»دهیلوپې سمسورشو



---

۱ : پکه دغه دې لا بله سپکه
۲:دبسوګۍ واده ورځخه جوړشو ،  (وځنډېده .)
۳:لاس یې تورې پیشو ځټلی ، (بدمرغه دی .)

## زولنې

ماوېل زه به درته دام رږدم له دانې سره
اوس خوته راغلې له مستې يارانې سره
زه په ګردوزيارتونوګرزېدمه
ستاپه مينه کې دسرله نذرانې سره
ګام په ګام درسره ګرزم لاس تړلې
ستادزلفوله وربښميني زولانې سره
نوربه وشکوم دصبرځنځيرونه
څه به ځان سمبالوم له زمانې سره
لاترڅوبه بدرګه درسره ځمه
نورمې پرېږده دوصال له خزانې سره
په وربوز باندې به نه راسره ګرزې
«خيال»ته وګوره له مينې مستانې سره

نه پښتون نه هزاره يم نه تاجک
نه ترکمن يم نه بلوڅ يم نه ازبک
زه افغان يمه له ځانه راته ګران دی
دوطن دپاکې خاورې هرڅپک

## ۱۱۴

دبڼونېزې دې ولې په هر لورې
خوزماله زړګي وزي پورې ورې
مورېې څکه سپېلني ورته لوګی کړل
ديارسترګې بې کجلوتورې تورې

## وانه

چې زما دمينې درمند دې چانه
راته وايه ګرانه څنګه دې ګانه
دزړګي ستنې مې مه وله ،نړېږي
چې دې بيا په ماشه کړي دې بانه
داتور مخې يې دعوه لري په زغرده
ته به وايې چې خپل مال يې دی وانه
که مې بيادزړه غورزی له واکه ووزي
روغ غوړونه به يې دواړه شي کانه
ديارڅنګ ته به په سپينه رڼاورشم
که د «خيال» دنصيب ستورې شې رانه

-------------------------------

موږ دې وشړو ،ته بیا راشې هجومه
نابللې مېلمنه راڅخه د رومه
که مو ببرته پخواني سوبې ته لاس کړ
بیا به وزې له دې غرو څخه په کومه ؟

-------------------------

مستې مخ دې د شیدو د سر پېروی
نن یې وینمه پلو دې یو یستوی
چې په سترګو کې ستونه راته کاندې
دغه ښکلی خوی دې برېښې راته نوی

## نذر

زه چې مينه درکوم ته مې ترټې ۱
لا مې ولې له ديدن څخه رټې۲
زما پام دې دګربوان په پولو ګرزي
که يې غواړې د سرنذر مې ګټې
مين زړه مې د اوږدو غمونوجېب دی
چې هرڅويې په منګولو پلټې
که پاچاشې دپره دو ترحکم لاندې
هرمهال به دغليم کاسې څټې
توري سترګي دې بازان دلوړوغرونو
چه زمادزړه په سر وهي غوټې
اوس به لرې شې دخيال دسينې دوړې
زه چې اورم د پښتوخوږې ټپې



------------------------------

۱: تره ټل=تهديد کول = غوږ تاوکول ، چې
دتصادف له مخې دانګليسي «له تريېټ»
Threat (ګوش مالي ) سره برابر شوی

۲ : رټل = محروم کول = شړل

## د کاڼي زړه

لا د جنګ په نيلي سپوريږ زغلوي يې
دلته وينې دې ارزانه تويوې يې
لا يې څو په توکمونو سره وېشې
يو افغان دی د پېړيو بېلوې يې
يا په جنګ يا په ولجو يا په دمونو
ستا په فکر سادګان دې غولوې يې
په سينه کې دې د کاڼي زړه دربېږي
لا د غم د وبا اوردی بلوې يې
ګوره سر او مال به دواړه پکې بايلې
دا په غرونو کې بازان چې ابلوې يې
ستا د سرو سترګو ازغی لکه چې «خيال» وو
اوس دې کېووت په منګولو ژوبلوې يې

داغ دبې پتې دې دلمن په برخه مه شه
ترخې او ځوځان دې دچمن په برخه مه شه
خاوره دې که خپله وي ولکه يې د پرديو
هسې پاچاهي دې دوطن په برخه مه شه

،،،،،،،،،،،،،،،،،،،،،،،،،،،،،،

دزړګي دمينې ګل مې، په هغې مهينې ګرودی
چې په«د»پسې يې«ر»توری په«خ»پسې يې «و»دی
دآشناله تورو زلفو دعطرو نووږمې پاڅې
چې کرلې يې ګلونه په لوونګوکې يې لودی

## نوم

خ=خيالي وربل دې په ماواچوه درپټ مې کړه
ماتر وزرولاندې وپېچه واسکټ مې کړه
ی=يو ائې ستاپه توروسترګوکې درمل لرم
په زړه رنځويمه جانانه روغ رمټ مې کړه
ا=اوس چې اجل دتا دمخ ډېوې ته راوستم
دمينې اوردې راته ولګوه سټ مې کړه
ل=لږمې په غېږه کې دزړه خواته درکېکاږه
تل به دې ژوند سمبالوم د اوږې مټ مې کړه
م=مستې زما نصيب په تا پورې تړلی دی
دوصال برخه راکوه دکلي چټ مې کړه
ح=حيرانه ولې راته ګورې سپېلنی دې شم
راشه زماپه ټټر وغزېږه کټ مې کړه
م=ماته په کمه سترګه مه ګوره مين دې يم
له خپل ښايست سره مې سيال وګڼه غټ مې کړه
د=دغرونوخيال يم که مې اېل درسره ساتې نو
دخولې ترياک دې په ما ولوروه لټ مې کړه

# پورورۍ

داویاند چې ګورې د همد غه ښار وګړي دي
دا د غلیمانو د غد یو د جال غړي دي
بیا زمونږ د لپو لپو اوښکو څخه باج غواړي
د بې د زمانې مو ، لا دوینو پورورۍ دي
کله یې داغرونه او سیندونه لېږدولای شوای
جام یې د غلبېل په شانې ، پړی یې او مړي دي
بیا یې دالېوه کومې رمې لره ساتلي دي
بیا یې د تابوت په منځ کې ایښی لکه مړي دي
غبرګې پنجرې مې د سینې د قفس ماتې شوې
زړه یې په منګولو کې ژوندی را څخه وړی دي
«خیاله» د غه نور به تر منزله پورې څنګه ځي
دا بهیرد اوو اوښانو لا پسې نیمګړي دي

## الماس

زړه مې کټ کټ لکه ماشوم د رپسې ژاړي
ستا د مهينې ځوانۍ مينه را نه غواړي
د زلفو هر و ښښته دې لښته د لوونګو
د لاس منګولې دې سکه د زمري داړې
لکه شاهين په چنارونو کې دې غواړم
د ځګو غرو کوترې چېرې را نه ولاړې
د سپين تندي خال دې الماس د کوه نور دی
له ډېره خياله دې د خولې خبرې لواړې
د اروپا تر بهار اوړی ښايسته دی
نجونې نسونه لوڅوي لمنې نغاړي
زما په فکر کې رنې را سره ګرزي
که يې هر څو مره هېروم د ګودرغاړې
د «خيال» له سترګو سره سترګو ټکر وکړ
اوس يې د زړه ګو نبزه شنه لمنې شاړې

## وطنه

دزړه په سرباندې مې ځای لرې وطنه
دلوړو غرونو په لمنو کې پلنه
په هره لوېشت دې دلمانځه سجده رواده
دمسلې غوندې دې پاکه ده لمنه
چې کوم ابلیس دې په ویاړونو لګېدلی
په ماته ژامه دې شړلی دی مننه
هره دره دې یوه زانګو دهوسایني
په هر بچي باندې دې ډېره لورېینه
که دې هرڅو په راکټونو باندې ولو
لادې پرانستې راته غېږه ده پتمنه
ددښتو هربوټي دې څانګه دلونګو
غردې په رنګ کې ښایسته دی له چمنه
دتاله پت سره مې ژوند تړلی وینم
له سر اومال سره دې فرض ګڼم پالنه
که دې زماد وجود وینو ته وي اړه
په دواړو سترګو مې منلې ستابلنه
دتادجګو غرود څوکو بلاواخلم
والله چې ډېر راباندې ګران یې زماتنه
خیاله که زړه ته دې ارام لیدلی نه وې
دهیوادخاوره درنځونو درملنه

# شعر

شعرخپلې ځواني لره پسول غواړي
وزن لره تله غواړي تول غواړي
کله ردیفونه، قافيې لري
ښکلو کلمو لره کچکول غواړی
ښې استعارې او کنايې لري
ښې او منځپانګې لره شپول غواړي۱
مستې ولولې يې په بيتونو کې
ګڼو انځورونو ته کهول غواړی
زړونو ته خوندونه او جذبې وبښي
ساری او تشبه لري سمبول غواړي
ښايي مفکوره او تخيل ورته
حسن او احساس ورسره ټول غواړي
کارېږي له زړه سوي او خواخوږي سره
مينه د پيمخوبډه بول غواړي ۲
«خيال»يې چې سالار د تصويرونو شي
بيا نو د اتڼ لپاره ډول غواړي



---

۱: شپول=پنډغالی
: شپول = هاله
۲:بډه بول=ښکاره=څرګند=په ډانګ پېيلې